و لړ دا بنځه څوانه وه او د استایوسکی د ا ډیره شریفه ــ نجیبه او زړه ساتونکی ښځه او داسی میرمن معرفی کړی ده چه په خپل عمر کښی ئی ــ چیری ساری نه دی لیدلی .

سره ددی یی ژوند ورسره پــ تیکمرغی کښی نه دی تیر شوی په( ټودر) کښی داوړدی مــو دی تیرولو نه وروسته ده ته اجازه ورکول کیږی چه بیرته سن پتر زبرك ته لاړ سی خود ورتګ سره سم پوهیږی چه دی اوس هیرشوی دی او پخوانی دوستان تی سره تیت او پرك شوی دی .

لــه(۱۸۵۹) نــه را وروسته دی بیا په خپل ادبی ژوند پیل کوی او ځینی اثار لیکی چه په هغو کښی یی ډیر جالب اومهم «د مړیو دکور خاطرات یا په بندی خانــه کښی پخپله د داستایوسکی دژوند خاطرات او «تر مځکی لاندی خا طرات» دی . دغو اثار و داستایوسکی ته له لاسه ورکړی شهرت بیرته وګاټه او دومره اغیزه ئــی و کړه چه تــزار دوهــم الکساندر یی وژړاوه خوله بنده مرغه داستایوسکی سره له دغه بنه شهرت نه خپلــه ښځه او خــپل ورور ډیری فقیری اوبی وزلی توب په حــال کښی له لاسه ور کوی. اما داستایوسکی وار خطا کیږی نه اوله دغه ټولو مصیبتونو څخه دتحمل اومبارزی درس زده کوی

او دبشری روح په باره کښی عمیقو تجربی لاس ته وروړی ــ څو موده وروسته دزیا تو باارزښتو اثارولکه «جنایات او مکافات» او «قیمار باز او په لیکلو لاس پوری کوی چه دغه اثار نور هم زیات شهرت ورپه برخه کوی په ٤٦ کلنی کښی له یوی ۲۱ کلنی نجلی سره واده کوی خو خرنګه چــه دطلبګارانو څخه پوزی ته راغی له وطن څخه ئی جلا کیږی او دخپلــی څــوانی ښځی سر ســر کــر د ا تــ ګــرځی څــود «طلسم شو یــو په څپرولو سره ئی ویاړ او شهرت تکمیلیږی او دومره پیسی لاس ته ور ځی چه بیرته روسیی ته وربا ندی لاړ شی په روسیه کښی بیا څو ادبی آثارو لیکی چه په هغو کښی یی «د کارامازوف ورونه» ډیر مشهور اثر دی او په حپله دی یی دڅان شاهکار بولی په همدغه وخت کښی دده دشهرت او اره حتی دتولستوی او تورګنیف شهرت ترشعاع لاندی نیسی . دی په ۱۸۸۱ کال کښی دنزف الدم د ناروغی په اثر مړ ی او د روسیی تیواد دخپل دغه پخوانــی بندی دجنازی مراسم په درنښت سره اجرا نوی .

**د کا را ما زوف ورونه**

دا کتاب د داسایوسکی معروف اثر او دده شاهکاردی لکه چه ومو ویل موضوع ئی در حمانی او شیطانــی قــو او و تــر منځ جګــړه ده .

د دا ستایوسکی ټوله فلسفه په
همدغه اصل بناده چه دغه نظر
دافکـــار وله منطقـی تسلسل او
دبشري ژوندانه دعادي صحنو
سره مغایرت لري دده دټولواثارو
قهرمانان په تیره د«دکار اماروف
وروڼه» ــ قهرمانان یی تل سرې
خواته منحرف دي ــ نوڅکه کله کله
غیر متوقع پیښتونه اوپیوستنی
پکښی لیدلی کیږي ــ دلیکوال په
قول امکان لري چه انسان ددرندي
بار شوي بیړي په څیر تل په خطر
کښی وي اوکله داسی موقع راځی
چه ناځاپی ډوب سی .

دغه داستان دیوې عجیبی کورنی
دما جرا کتاب دي او دفیودورکارا
مازوف فاسد الاخلاق بوډا حوډیر
شته منروابط لهدریو زامنومیتیا ــ
ایوان اوآلیوشا اویو حرامزاده ــ
ژوي «اسمردیا کوف» سره شرح
کوي .

خلور واړه زامن دپلارنه متنفردي ــ
میتیا یو افسر دي پوچ ماغزه لري
اوخپل عصبی اوتندهیجانونه دخپلی
ارادي په قوت تعبیروي . دي ډیر
متکبر اوله ځان نه راضی حساس
اوژر په قهر کیدونکی سړي دي
او کله چه په قهرشی امکان لري
چه لیونی کارونه ورڅخه صادر
شی . دي اصلاشریراوخبیث انسان نه
دي خو خرنګه چه زرپه خپلو
عصبانیتو نو پښیمانه کیږي دا
احساس هم لري چه امکان لري نور
خوك دده وجود ته اړ تیاولري او
دي باید له خلکو سره دمرستیاو
کومك حس ولري .

ایوان دروښانه فکر خاوندي
.. تحصیل هم کړي دي دهغه نظریه
..نفس العمل چه دي ئی دپلار په مقابل
..سی لري په بل ډول ځان ښکاره
..وي دي دسړي سینی خاوندي
..بینی ئی په چوپتیا کښی ځان
..تعبنتی حتی په زړه ئی همدغه ډول
..سئوت تحمیل کړي دي ــ له دي
..بنه داندیښنونه ډیره لري دخدای
..عشق اودخدای دبندګانو له عشق
..حه منکردي خوله دی کبله چه ډیر
..ساس ښکاري دنورو ډیرو خلکو
په حیـــره خپــلی دغــی عقیــدی
..حــه پـــه د و ا م د ا د
فعالیت ــ هوشیاري او پوهه دفاع
کوي.

الیوشا چه داستایوسکی د رومان
دلومړنی طرز له مخی باید ددغه
داستان قهرمان وی د زوسیم نومی
روحانی په مخ کښی په وچو تعلیماتو
او تندو احساساتو کښـی روزل
شوی دی او ډیرزیات متعصب دی.
.. ده ساتندوی هغه خاص لطف دی
چه په کښی شته او له سادګی او
صفاتی څخه یی پیـدا شـوی دی
نوڅکه دي په خاصه معنی( معصوم )
دی چه موږ یی بی خولی او ژبی
او یا محجوب بولو.

.. په باره کښی هغه څه باید
ووایو چه د نورو په باره کښی یی
نشو ویلای دی د ده پـه فـطرت
کښی له خوشرویی اوعصمت سره

جوختّه یوه‌چوپیاشته اوله‌دغه‌سکور
سره یی‌دعدالت پروری‌فکرهم شته
ی دی له هغو سادگانو څخه دی
چه دداستایوسکی توجه‌یی‌ځان‌ته
ور جلب کړی وه لکه چه په همدغه
ډرم یی بل رومان هم لیکلی دی او
د سادگی مظهرئی په خپل یو بل
اثر پرنس ( موی‌چکین )کښی هم
مجسم کړی دی . د دغو وتیپو
سادئی له دی کبله ده چه دوی
خبری نه کوی خوپه‌عین حال‌کښی
ساده او د پاك زړه خاونـدان دی
د دردونو اوالامو د تـسکینولو
پرته بل فکر نه کړی .

حـــورم حـــرامـــزاده زوی
رسمردیاکوف یو فاسد الاخـلاق
غړی دی‌چه‌دښه‌زړه‌خاوند نه‌دی‌او
د صرع په ناروغی‌اخته‌دی‌او پلارئی
په خپل کور کښی د خاص نوکر په
حیث ساتلی دی او همدغه وضعیت
د کورنی د روابطو په خړ پړ کولو
کښی‌فوق‌العاده‌تا ثیرلری. دداستان
کشش زیات نه دی خـو خـاص
کړکیچ او ابهام لـری پـلاروژل
کیږی مگر د کتاب تر پایه د دغه
قتل واقعی عامل نه خرگندیږی.

رومان ډیر هیجانی او اسرار امیز
دی لومـړی قسمت د دری گونی
تحلیل‌مجموعه‌ده او دداستایوسکی
عمر وفـا نـه‌ده کړی چـه دا ده
نوراثاریی بشپړ کړی.

د ( تز )لیکوال د زور د قـدرت
د روح د بیرته‌لاس ته‌راوړود لزوم
او یا د تکلیفونو د زغملو په باره
کښی خپله وروستنی فلسفه پـه
داستان کښی طرح کوی. کتاب په
دی برخه‌کښی‌چه دعقاید و دپلټنی
موضوع منځ ته راځـی او ایـوان
د الیوشادقانع کولود پاره‌د مسیح
تاریخ له اسمان‌څخه‌مځکی ته دهغه
د راتلو او د عقایدو د تفتیش په
اثر دهغه دمحکومیت په باره‌کښی
موضوعات تر بحث لاندی نیسی
دخپل قدرت‌او‌کمال اوج‌ته رسیږی
ایوان وایی محکومیت د دغی نقیص
په اثر دی چه خلکو دا لیاقت نه
دی لرلی چه د عدالت او محبت
پیغام‌لکه‌څنگه چه‌دی‌هغسی‌درك کړی.

په دی اثر کښی د داستان اصلی
محورد هغوکسانو په‌روابطوچورلی
چه له ځان او یو د بله سره‌یـی
لري اوهدف یی یوقسم تعدیل او
موازنه ده او داروابط دپلاراوزامنو
او وروڼو تـرمنځ له علایقو څخه
عبارت دي .

دغه‌څلورزامن‌چه دټولو تضادونو
سره‌سره‌په عجیب او مبهمه توگه
سره را ټول شوي دي اودگلیزونه
دامڅان په هغه کښی دي هغه څوك
چه له‌نوروڅه زیات اوسخت له‌پلار
سره مخالف دي میتیا دي . څوهغه
څوك چه په سره سینه دپلاردوژلو
نقشه تر بیبوي ایوان دي اوهغه
څوك چه په دي نقشه پوهیږي او
دعملی کولو په هغه کښی‌یی‌کیږي
ناروغ اوبد بخته اسمردیاکوف‌دي
حواوضاع اوحالات دمیتیاپه زیان

پاې ته رسیږي اودي بندي کیږي.

## تباه شوی ....

### د مار گریت میچل اثر

(تباه شوي ....)دمعاصر امریکائی لیکوال مارگریت میچل یوازینی شاهکار دي دغه رومان یوه تاریخی قصه لري چه د امریکی دداخلی جگړو پیښی په کښي راغلی دي داجگړي په ښکاره دغلامی دلغو کواو اودتور پوستو دنجات له پاره خوپه باطن کښی دجنوب دحاصل خیزومځکو دلاسته راوستلوله پاره دشمالي والواوجنوبي والوترمنځ شوي دي اوداستان دخپلواکی دجگړوپه وخت دامریکی دایالاتو په جنوب کښی دجگړو وصحنه تمثیلوي .

ټولی نړي په عجیبه توگه ددغه کتاب هر کلی وکړ اوددنیاپه ډیرو ژبو ترجمه کړي شو ـ اوله هغه څخه یو فلم هم جوړشوي دي .

د کتاب لیکوال مارگریت میچل دژسوژیا په اتلانتاکښي په ۱۹۰۰ کال کښی زیږیدلی دي اوپه ۱۹۴۹ کال کښي وفات شوې دی دشخصیت دومره جالب نه دي خوکتاب یی شهرت زیات کړي دي دداستان لنډ یز په لاندي ډول دي .

په ۱۸۶۱ کال کښی دامریکي په جنوب کښی حکومت بحرانی شو خودهغه ځاي خلك له دغه بحران څخه دومره خبر نه وو خپل ارام او نیکمرغه ژوندئی ادامه ورکوله دانیکمرغی دوی ته دملیونو تور پوستوانسانانو لـه اسارت څخه حاصله شوي وه تورپوستو پرتـه له دي ـ چه تور پوستی ووبله گناه نه لرله .

د دغه کال دهرې ورځی دتیریدلو سره دبحران تبه ورو ورو زیاتیدله اوخردي حد ته ورسیده چه حتی په خصوصی مجلسونو کښی به هم دشمال اوجنوب ترمنځ دجگړي ژرپیښیدو په باب خبري کیدلی د جنوب فیوډالیزم تور پو ستو غلامانو ته اړه لرله چـه زراعتی محصولات وربانديي په تاوده لمر اوسوځو ونکو صحرا گانو کښی حاصل کړي خود شمال دولت دغا رازغلامانوته اړه نه لرله بلکه دجنوب دحـاصل خیزو مځـکو دخپلولو ارزویی لرله ددي کاردپاره دتور پوستودحمایی نه پرته بله انسانی بهانه نه وه او ددغه کار دپاره دهغه وخت دډیر شریف اوصادق انسان ابراهام لینکلن نه پرته بل څوك درهبري وړنه ؤ . خواخردي هم یو متعصب مړکي او ورپسی خلـکو سودیانه اونبکی هم تویی کړي چه هم دغه کار له جان ایف کنیدي سره چه دتور پوستودازاي اودنړي دسولی دپاره ئی خدمت کاوه وشو .

په هر صورت په جورجیاکښی ددوولس بلوط» ملك دکباب میلی ته هم دجگړي خبروسرایت وکړ . په دي میلـه کښی ډیـرو خانانو گډون کړي ؤ ددغـه مجلس ډیر ښکلی پیغله اسکارلت نومیده اوداد «تارا» دبختور ملك «جرالد اوهارا» لوروه . اسکارلت په اشلی ویلکز باندي مینه وه خواشلی غوښتل چا

نه یوې بلی ښکلی پیغلی «ملانی‌ها مینښ» سره‌واده‌وکړې داواده‌وشواو زلمی پخپل دغه کـار سره پـه یه‌اسکارلت باندې دکینې اوحسد دزهرو غوړپ وکړ. اسکارلت هم بوازې داحمقانه‌انتقام‌له پاره‌دملانی له‌ورورچار لزسره په داسی‌حال کښی چه مینه ورباندې نه‌وه‌ازدواج وکړ خوچار لز داکار دخدای نـه غوښت دې‌په‌اسکارلت‌باندې دمخه هم‌مین شوې ؤ داشلی دواده پـه محفل کښی هم دشمال اودجنوب دجګړې خبرې یادې شولی . اشلی یوهوښیار اشراف زاده‌ؤ دجنوبی والو په‌ماتی‌یی ډاډ درلود ده‌ددغی جګړې دشوم عاقبت حدس وهلی شو او عقیده یی لرله چه باید له غروراو تکبرنه کاروانه خلی‌اودیو عاقلانه تدبیرپه نیولوسره دجګړې مخه‌ونیسی ځکه چه دبشر ډیری بدبختی له جګړونه پیدا کیږي . خو دغه‌خیرې اونصیحتونه دجنوبی اشرافواودهغه ځاي دخانانودیاره موږ دزغملو وړنه وه ـ

ملګ‌واې‌یوسپین‌ژیرې چه‌جنګونه‌ئې په‌خپلو سترګو لیدلی ووُ وویل. جګړه څه شی ده ؟

لوړه ده ـ په یخ و هـلو مځـکو لو بدل او دذات الریه په ناروغی اخته کیدل دې. په‌هغه مجلس‌کښی هرچا غوښتل چه‌دجګړې په‌باب‌څه ووایی اودجنوب دعسکرو قدرت وښیی .

دواده په محفل کښی یوزلمی‌ات باتلر چه پـه جسارت اووقاحـت مشهور ؤ دنورو خبرې پرې کړې او ویې ویل:ـ «ښاغلو ایا ستاسو پام دی خبرې ته‌شته چه دمیسون اودیکسون‌دکرښی‌نه‌را په‌دې‌خواحتی دتوپو نوجوړ ولو یوه فابریکه نه شته . په ټول جنوب کښی فقط دوسپنی دریخته‌ګری‌دری فابریکی شته‌ـ مونږ بوه جنګی بیړ ی هم نه لرو په داسی حال کښی چه شمالی‌وال کولای شی چه په‌یوه هفته کښی دننه په خپلو جنګـی بیړیو زمونږ ټول بندونه محاصره

کړی په هغه صورت‌کښی به مونږ حتی یو عدل پنبه هم‌پـه خارجی هسوادونو نه شو پلورلی. نوښاغلو تاسو چه دجګړی اودشمالی والـو سره دمقابلی‌خبری کوی دغه ټکی مو په نظر کښی نیولی‌دی او که نه» دغه حسوږ سړی خپلی خبری د متروکی اوقمچینی په څیر دنورو په مخ ورووهلی خو تجاوز کارانو دخپلو لوبو او زیاتو منافعو پـه خطر کښی لویدلو مسئله په نظر کښی لرله اودغوفکرو او اندیښنو دوی دومره کرخت کړ ی وو چه ډیرو تندو متروکوهم‌دوی دسویی خوب ته و رتـه غفـلت نه نشو ویښولی .

بالاخره دشمالی والواو جنوبی والو ترمنځ جګړه ونښته په دی جګړه کښی ډیری وینی تــو یی شوی او کورونه‌وران‌شول میندی بوری شوی او کــونــډی یتیمان زیات شول . ځینی خلك په خپله خوښه جګړی ته‌ورغلی و اوځینی جګړې ته مجبور شوی وو.

په دی ماجرا کښی جسور زلمی رت باتلر په اسکارلت باندی مین شو لاتر اوسه اشلی په‌اسکارلت باندی ګران‌ؤ خودملانی‌بزرګواری او حوصله او نجات ددی باعث ؤ چه اســکــارلت دخپلی سرښتی طبعی او ګناهکار روح سره سره ددی په ضد ناوړه فکرونــه پــه سر کښی ونه لری . رت باتلر د اسکارلت له اخلاقــو او روحیی ښخه ښه خبرواوهرکله به‌یی ددی له باطنی افکارو ځــحه دپــردی جګولو هڅه کوله او دا کار ددی باعث شو چه اسکارلت نوره هم په قهر شی او ځان ورك‌کړی بــایــد وویل شی چه د اسکارلت میړه او دملانی وررور پــه جنګ کښی وژل شوی و .

جنوبی والوماتی وکړه حکومت‌یی له منځه لاړ او په هر ځای کښی دشمالی د ولت بــیــر غــو نــه ورپیدل . شمالی وال عسکر بــه چه هرچیرته ور رسیدل هــرڅه به‌یی چورکــړل ا و یــا بـــه یی سو ځول . د «تارا» او « دولس بلوط » سیمی هم له دغه سرنوشت خراب کار وشی ددی کــار نــه

ښخه بی نصیبی پــاتی نشوی ـ اسکارلت چه له ملانی سره پــه اتلانتا کښی اوسیدله‌دملانی‌دنوی زیږیدلی زوی سره په یوه ماتــا ګاډی کښې چه رت باتــلر تهیه‌ کړی وه « دولس بلوط» او له هغه ځای ښخه خپلی سیمی«تارا» تــه پــه ډیر زحمت او کـــړاو ځـــا ن ورسوی تاراهم‌دجګړی په اورکښی هرڅه دلاسه ورکړی وو ترټوله غمجنه پیښنه داوه چه داسکارلت مور میس الن دحصبی دناروغی په اثر مړه شوی وه‌او خویند ویی هم ددغی ناروغی دکمزوری دوری تیرولی داسکارلت پلار جــرالــد او هارا دنا وړوپیښنو پــه و جــه دحواسو په اختلال اخــته شو ی و دا پرله پسی غمجنی پیښی ددغی بولهوسی ښځی دپــاره دمــرګ نه کمی نه‌وی .

بالاخره اشلی دمــلانی میړ ه پــه پیره مخ اورسیدلی‌زیره کورته راغی دی داشرا فیت له کــبلــه حساسوی چه په نوی‌ټولنه کښی ورته ځای نه دی پاتی شوی ځکه ځان ورته نا لایــقــه اوبی لاسه پیښو ښکاری اوپــه‌دی خبره اسکارلت په‌مخ کښې اعتراف هم کوی .

اسکارلت چه تل له اشلی څخه انتقام اخستلو په هڅه‌کښی ده په یــو ه خــا صه شیبه کښی ئی تیر باسی او داسی شرایط ورته پیدا کوی چه‌له ده څخه یو ستر

مقصد داؤ چه‌داشلی‌اوملانی‌روابط
برې کړی شی خوملانی د خپل
شرافت او نجابت له مخی داشلی
حراب کاری په داسی توگه کښی
حه ټول ورته حیرانیږی .

ب باتلر دډیروکړاوونوتیرولونه
وروسته له اسکارلت سره واده
کوی رت باتلر دملانی ډیر زیات
احترام کوی خواشلی ته ئی چه
اسکارلت یی داسی په ځان ماته
کړی ده زړه د کینی ډك دی
ملانی د اولاد په زیږیدلو مړه
کیږی او مړه ئی سخت
ور باندی غمجن کیږی رت‌باتلر
چه داسکارلت او اشلی د عشق
بازی دپاره میدان خالی‌وینی اوله
بلی خواه داسکارلت په خوی بلد
شوی دی او دځان‌په‌نسبت دهغی
وفا داری متزلزله وینی په زیاتی
بی رحمی یی طلاقوی آیا داخل
ده اشتباه کړی‌وه ؟ آیا رښتیارت
باتلر په اسکارلت گران ؤ . آیا
دجنوب خلکو دفیودالی‌حکومت او
نورو علایقو به له لاسه ورکو لو
سره نوی بنه شیان لاس ته
وروړی ؤ او که نه . دغه پوښتنی
او د غه راز نوری ډیری
مسألی هغه مطالب دی چه
ددغی مختصری مقالی له حوصلی

څخه وتلی دی او داهغه پوښتنی
دی چه ځوا بو نه یی گرانو
لوستونکو ته دبشپړکتاب دلوستلو
نه وروسته حاصلیږی .

# بینوایان

## دویکتور هوگو اثر

بینوایان دفرانسی دنونسمی‌پیړۍ
ډیر لوی رومانتیك رومان دی چه
لوی فرانسوی‌لیکوال‌ویکتورهوگو
لیکلی دی .

**هوگو :** ویکتور هوگو ـ لامارتین
اوالفرد دو وینی دفرانسی دری
لوی رومانتیك شاعران دی چه
یویی باید درومانتیزم دمکتب په
مشری ومنل‌شی . هوگودلامارتین
په اندازه حساس او باذوقه نه ؤ
او نه دوینی په څیر متفکر او عمیق
سړی ؤ خو په خپل خلاقه قدرت
یی خلك ځان ته متوجه کړل او
حریفان یی‌درقابت له‌ډگره وویستل
لامارتین دمشری او پیشوایی
پروانه ساتله او دووینی‌هم داراز
نقش نشولوبولی خو هوگو ددغه
کار دپاره قدرت اراده او انرژئ
درلودل نوځکه بی له معار ضه
درومانتیزم دمکتب پیشوایی یی
په نصیب شوه .

ویکتور هوگوپه۱۸۰۲کال کښی
دفرانسی په یوکو چنی ښار
( بزانسون ) کښی وزیږیده
پلاریی جنرال هو گو یو لوی
منصبدار او د امپر اتوری
دوختنویو سردارؤ ـ ده کو چنی
ویکتور له ځان سره ایتالیی او
اسپانیی ته بوتلو د غه ماشوم له
هغو ښکلو لمرو هلو مځکو څخه
ځینی خاطری په ما غزو کښی
وساتلی کله چه دی لس کلن‌شو

پلاریی بیرته پاریس ته ور سره
راووست او په یوه جلا کورکښی
یی چه دفویانتین په کوڅه کښی
وهستوگڼه غوره کړه هوگو لـه
همدغه وخته دپخوانیو شاعرانو
دآثارو دمجموعی په مطالـعـه او
دخینو مقالو په لیکلو پیل وکـړ
او دغی ارزو ته یی پـه‌زړه کښی
ځای ورکړ چه « یادی هیڅ نه‌وم
اویادی شاتوبریان شم » ده‌لومړی
خپل شعرونه په‌کلاسیک‌سبك وویل
اوخپاره یی کړل بیایی رومانتیزم
ته مخـه و کـړه کـو مـه
مقدمه چه ده د«کرمول» په کتاب
ولیکله هغی درومانتیزم په‌مکتب‌کښې
ده پیشوایی څرگنده کړه(۱۹۲۷
ده خلاقه قدرت‌دومره‌زور ومونډ
چه په بیلو بیلو ادبی رشتو کښی
یی‌خپله طبع‌وازمویله.ده‌د۱٦ کالو
په موده کښی (له ۱۸۲۷ )څخه‌تر
(۱۸۴۳) پوری زیات رو مانو نه
ولیکل‌او خپاره یی کړل چه پـه
هغو کښی یی «نتردآم دوپار ی»
زیات شهرت وگاټه.

دغه راز ده څه نوری رسالی اود
اشعارو مجمو عی‌او سفر نا مـی
( شرقیان) خزانی پاڼی‌دماښام
نغمی‌ــپټی ناری‌ــوړانگی اوسیوری
په نظم کی ولیکلی دوروستی‌اثو
ناکامی دی دی خبری‌ته ملتفت‌کړ
چه اوس‌در وما نتیزم دوره تیره
شوی ده .

هغه وخت چه دبوربون کور نی
بیرته دفرانسې دسلطنت واگی په
لاس کښی ونیولی دغه لیکلوال د
سلطنتی حکومت طرفدارژ اوکله
کښی چه دلویی فلیپ استبدادی دوره
راغله نوده دمطلقه‌حکومت ملاتړی
وکړه خود۱۸۴۸ کال‌نه‌ورو سته
دیمو کرات شو. په‌عقیدو کښی‌دغه
راز بدلولو نه اصولادکوم خاص
غرض او مقصد دپاره نه دی امکان
لری هغه‌دهرسیاستمدار دژوندانه
په لومړنیو مر حلوکښی‌راغلی‌وی
حو ویکتور هوگوبی سببه په‌دی
هڅه کښی شوی‌دی چـه‌په‌خپلو
آثارو کښی دهر ډول دروغـو او
سفسطی په وسیله په هغو پرده
واچوی ترڅوچه دخپل ژوندانه د
افکارو او عقایدوپه رشنه کښی‌یو
خاص «البته مصنوعی» یووالی را
پیدا کړی په‌هر صورت هو گود
خپلو افکاروددغه‌تشتت‌او تیتوالی
دجبران کولودپاره‌خپله‌دیموکراسی
غوښتنه دعمر تر آخره پوری‌پالی
اوبیا خپله عقیده نه بدلوی.

ده‌دریم ناپلیون له مطلقې سـره
سخته مبارزه‌وکړنوڅکه د کودتا
نه‌وروسته یی دی‌له‌بروسکل څخه
ژرزه او بیاگزمزه‌ته‌تبعید کړ تردی
چه‌د سرسیوری‌پیدا کولو د پاره
سر گردانه شو.

دحواد ثو تر څپیړی لاندی دده
طبیعی زور ومونډ اوداشعارو دری
مجموعی یی «کیفرو نه» (۱۸۵۳)
«مشاهدات» (۱۸۵٦) او «دپیړیو
افسانه » (۱۸۵۹) چه‌دده له‌مهمو

آثارو څخه دی په دغه وخت کښی
خپری کړی تردی وروسته یی نوی
رسالی اورومانونه ولیکل ـ په لسو
جلد وکښی د«بینوایان» کتاب یی
چه لوی شاهکاری دی په همدغه
وخت کښی ولیکه .د(۱۸۷۰)
کال دسپتامبر کودتا اوددریم
ناپلیون ماتی دفرانسی درواز ی
دده په مخ پرانستلی او هوگو
بیرته خپل هیواد ته لاړ. ده په المان
پوری داکزاس او لورن دالحاق په
ضد مبارزه وکړه او بیا په نمایندگی
وټاکل شو. هوگو خپل نور ۱۵
کاله عمر د«دری نوی» ـ«دسیند
کارگر ان»اود«خندیدونکی سړی»
داشعارو اورومانونه په لیکلو تیر
کړل. دی په خلکو کښې ډیر زیات
محبوب شوی ؤ.

دولتر په خیردده په مړینه هم
ملی ویر جوړ شود جنازی مراسم یی
په داسی توگه اجرا شول چه دا
ډول مراسم دبل چا په باره کښی
دتاریخ په حافظه کښې ډیر کم دی
دده جنازه یو شپه د نصرت تر څلی
لاندی چه مشعلونه ورته ور ته
لگیدلی وو کیښودله شوه اودهغی
شپی په سبا دپاریس خلک تر
پانتئون پوری دده له جنازی سره
لاړل او په مزاریی وژړل(۱۸۸۵).

## بینوایان

دیوداسی لوی اثر لنډیز او تحلیلول
ډیر گران کار دی ځکه چه دداستان
پیښی یوه له بلی سره ښه تسلسل
نه لری .سره ددی هم ترڅو چه
امکان لری اختصا ر او لنډیز ئی
په لاندی ډول وړاندی کیږی.

په شاقه کارونو محکوم ژان والژان
له بندی خا نی څخه تښتید لی دی
څر نگه چه خلك دیو خطر نا ك
محکوم په تښتید لو خبر شوی دی
ټولو خپلی در وا زی په مشکو کو
خلکو تړلی دی ، دلمر دلویدو نه
وروسته دژمی سا ړه اود خطرناك
محکوم ویره ټول خلك په خونو ننه
باسی .ژان والژان یو کو چنی ښار
ته چه کشیش یی« ابه میر بـل»
نومیږی ورځی خوځوك ده ته دخپل
کور ور نه پرانیزی په هو ټلو نو
کښی ور ته ځای نشته حتـی د
کوځو سپی هم دی په خپلو سوړو
کښی نه پریږ دی. ژان وا لژا ن
مجبوراً دکشیش کورته پناه وروړی
دکشیش خور چه د جنا یـت کا ر ه
بندی په تیښته خبر ه شوی د ه
خپل ورور ویره وی چه دغه نابلل
شوی میلمه ته په خپل کور کښی
ځای ورنه کړ ی خو کشیش چـه
ځان دمسیح په مسند ناست سړی
بولی درحـم ، شفقت ا و انسـا ن
دو ستی مظـهر دی نـه بېریـږ ی
او ژان والژان په خپل کور کښی
منی . شپه شوه ژان والژان چه د کاله
خلك ټول ویده ولیدل خوشمعدا
نونه او نقره یی پیشقا بو نه یی
غلا کړل او په خپله مخـه لا ړ.
پولیس دی نیسی کشیش وایی چه
دغه شیان ده په خپله ور کړی دی
او ورته وا یی چه خو شی یی کړی

وروسته له هغه ژان والژان تـه نصیحت کوی چه سړی تو ب دی ولری او سمه لاردی روا ن شــی ژان والژان خجا لت وبا سی او ځوړند سر روا نیږی خوچیری په لار کښی لهیو ما شو م شخه یو ه نقره یی سکه غلا کوی چه دغهغلا دده وروستنی جرم دی.

نا خاپه دمعصوم ما شومنا ری‌اود کشیش نصیحتو نه د ژان والژا ن په غوږو کښی انگا زه‌ا چو ی‌اوله خطرناك محکوم ا و جنا یت کا ر سړی شخه مسیو ما دلن شر یف او نیکو کا ر انسان جو ړیږی دی ددغهمستعار نوم پــه پر ده کــښی شوی‌دی او له بندی خانی شخه کو ښښ کوی چه ښه حیثیت پیدا کړی ،ځوکا ر خا نی ،جوړ و ی اودبی وز لو حال تهسخت متوجه کیږی په دی وخت کښی له فانتین نومی بد بختی ښځی سره علاقه پیدا کوی دابنځه دځو تنو رذیلو او شهوت پرستو ځوا نا نــو د هوا اوهوس ښکار شو ی او په مینه کښی یی فریب‌خو ړلی دی‌دااوس یوه ماشومه چه کو زت نو میږ ی هم‌لری اود یوشیا د او بی شرف سړی په میلمستون کښی او سی دادخپلی یوا زینی لور د خوراك تهیه کو لو له‌پاره لو مړی دخپل سر ښکلی ویښتان پلو ری او بیا خپل سپین غا ښو نه خر ځوی‌او په خپله کنډا سه خو له گر ځــی .

په دغه ښځه دغه ټولی بدبختی د مسیو ما د لن‌دکارخا نی په ځنگ کښی تیریږی آخر دا دهغه په‌مخ ناړی تو کی اوپه دی تر تیب‌سره اوسنی مسیو ما د لن یا پخوا نی ژان والــژان د ښځی په تکلیــف خبریږی او ورسره مرسته‌کوی . ځوك دمسیوماد لن په هو یت کښی خه‌شك نه لری‌خویوپه زړه سخت اووچ قانونی متخصص چه په‌ژا و ر مشهور دی دمسیو ما د لن پــه نــسبــت شــك مــن د ی ا و دده دهــویــت د معــلــو مو لــو په هڅه کښی دی.

ناخاپی مسیو مادلن خبر یږی چه تبنتیدلی‌محکوم ژان والژان نیول شوی‌دی او له بندی خانی شخه دتیښتی او په جرم بانــدی د بیا مرتکب کیدو په تو مت به محا کمه شی.

ددغه خبر په اوریدو سره لــه ما ښام نه تر سهاره پو ری ټو له شپه دده په ضمیر کښی د عقل او وجدان تر منځ جگړه پیداشوه آخر وجدان زور ورکیږی‌اومسیو سباسهار محکمی ته‌ورځی ځان‌ور معرفی کوی او هغه بل بی گناه سړی‌ته نجات ور کوی‌اودی‌بندی کیږی. مسیو مادلن اویاژان‌والژان بیا له بندی خانی شــخه تبنتی داخل دفانتین ما شو مــه نجلی کوزت هم ور ســره بیایی خــو هو ښیار پو لیس ژاوردی هو سا او آرام نه پر یږدی دی‌دژاورلــه لاسه له نجلی سره یو معبد ته پناه وړی آخر له ما شومی کوزت

څخه یوه بنکلی پیغله جوړیږی اویو زلمی چه مار یوس نو میږی اود یوی اشرافی کورنی څخه دی په کوزت مین کیږی او له ژان والژان څخه په پټه کښی ورسره گوری.

په هغه ورځ چه پاریس دجگړی او اغتشاش په اور کښی سو ځی ژان والژان دیو لیك په مینډلو د کوزت او ماریوس په مینه خبر یږی فو راً هغه سنگر ته ورځی چه هلته مار یوس له خپلو ملگرو یعنی د (اب دری) د جمعیت له افرادو سره یوځای جنگیږی خوماریوس ټپی شوی او بیهو شه یی پیدا کوی بیایی پخپلو اوږو راوړی ماریوس لری روغتیا مومی اوژان والژان ددوی دواده مراسمو ته د شوق اوښکی تویوی.

ژان والژان کوزت چه ځان یی پلار بولی ډیر ښه جهیز ورکوی ... بیا خپل هویت مار یوس ته ښیی او په خپله دانز واژوندغوره کوی، تر دی ورو سته ژان والژان یوازی ژوند کوی اود کوزت په بیلتانه کښی چه لوریی گڼلی وه اوښکی تو یوی آخر د تکلیفو نو زغملو طاقت نه ور ته پاتی کیږی او مری.

په دی رو مان کښی یوه گټوره له ما جرا گانو ډکه دنیا شته په کتاب کښی له اصلی مطلب نه تو پو نه حشوی او زواید ډیر د ی دښکلو صحنو او بر خو لر لو سره سره په ځینو ځایو کښی خبری ډیری اوږدی شوی. هو گو پخپل دغه اثر کښی ډیرموضوعات او مختلف هنرو نه او فکرو نه راغونډ کړی او له هغه څخه یی داسی معجون مر کب غو نډی رو مان جوړ کړی دی چه هم ادبی دی او هم تاریخی، فلسفی، انتقادی او حماسی هم دی په عین حال کښی یی له دغو رشتو څخه یوه هم نه ده پکښی بشپړه کړی، ددغه اثر ډیره لویه مشخصه جنبه انسان دو ستی اود محرو مو طبقا تو طرفداری ده او دا هغه یوازینی ارزښت دی چه د غه کتاب یی

## ښځه

### د س،م، ما تیسن اثر :

ښځه لو مړنی او ډیر معروف کتاب دی چه نو مور کی انگلیسی لیکوال س،م ما تیسن لیکلی دی. دغه کتاب ښه شهرت لری مگر لیکوال یی داثر په اندازه شهرت نه لری. دداستان لنډ یز په لاندی ډول دی.

دپسرلی په یوه سره شپه کښی می نوی چراغ لگولی ؤ چه زما نوکر کوټی ته دننه راغی او خبری یی راکړه چه زما کوم دوست زما دکتلو دپاره راغلی دی .دکنجکاوی حس زه مجبور کړم چه خپل هغه ملگری د ننه کوټی ته راوبولم دغه سړی زما دتحصیل دوخت ملگری روجردالتون ؤ .نه دبریستول دښار دبیمی په شرکت کښی کار

کاوه مگر زما شغل لیکوالی وه .
په‌سلیقو کښې د اختلاف په وجه یو
له بل سره مو ډیر لږ لیدل کتل
کول رو جر په کوچنی‌والی کښې
ډیر ښه آواز درلود خو چه د بلوغ
سن ته ورسیدږغ یې‌خراب شوی ؤ.
اوپه عوض ئې دپیانو اوارك وهلو
سره مینه پیدا شوی وه ـده دوه
وروڼه هم لرل چه دواړه په تجارت
بوخت وو او هوسا ژوند ئې درلود
روجرخو کاله وروسته له یوی نجلی
«اوا»سره واده وکړ اوله هغه څخه
ئې یوه لور چه «گیرس» نومیده
پیداشوه .دوی په ښکاره آرام اوښه
ژوند درلود خو په خلوېښت کلنی
کښې دبیمی دشرکت له صندوق
څخه دیو زراو دووسو وو لیرو
دغلاکولو په جرم تر محاکمی لاندی
ونیول شو اوبیا په دری کاله بند
او شاقه کار محکوم شوده بی‌له دی
چه دفاع وکړی په موسکا کښې
دخپل‌محکومیت حکم‌ته غوږنیولی‌ؤ
نو ځکه دی‌دعدالت قاضیانو یو
احمق سړی تصور کړ .له بنده‌څخه
دده له خوشی کیدو څخه موده
تیره شوی وه خوزه نه‌وم ورباندی
خبر شوی چه په همغه شپه زما
کورته راغی ـدده ښکلی صورت لږ
څه ږنگر شوی‌ؤاو دشقیقی په ویښتو
کښې ئې سپین لگیدلی ؤ .
روجر دخپل ژوند داستان په‌خپل
قلم لیکلی ؤاو غوښتل‌ئې چه په مائې
په سلو لیرو خرخ کړی یوه بله
هیله ئې هم‌لرله چه ښکاره کول ئې
بلی ورځی ته ټال کړل .
په هغه شپه ترسهاره ویښ‌پاتی
شوم اووده دژوندانه داستان می
ولوست باور می‌نشو کولای چه
داسی آرام اوهوسا ژوند به له
مهیب طوفان سره مخامخ کیږی
حتی ماگمان وکړ چه دداستان
ډیری مجراگانی دده تخیلی‌شیان
دی په‌هر صورت داستان ئی
داسی ؤ:
په‌یوه سړه بارانی ورځ کښې
دکلړ په‌لټون پسی‌گرځیدم دبیمی
دشرکت یومشتری چه‌شته‌من سړی
ؤ مړشوی ؤمگر ډاکترئی مرگ
مظنون ښودلی‌ؤدبیمی شرکت زه
ددی دپاره استخدام کړم چه د
هغه سړی قضیه ترتحقیق لاندی
ونیسم کوم ځای چه‌زما په‌تحقیق
پوری اړه لرله ۱۹ لمبر ودانی
وه ـهلته ورغلم اودروازه می
وټکوله یوی‌ښکلی ۱۹ کلنی‌نجلی
چه طلایی‌ویښتان یی لرل ماته
دروازه پرانیستله دا طنازه نجلی
می چه ولیده گمان می وکړ چه
دا به دهغه مړی لوروی چه زه
یی تحقیق ته راغلی یم خورا ته
څرگنده شوه چه‌ددی نوم ماویس
کوترل دی او دا دمتوفی شخص
برنارد کوترل ښځه ده دډاکتر
دنظریی په خلاف دبیمی دشرکت
دمشتری په مړینه کښې کوم
عجیب شی زما تر نظره رانغلل
او هرڅه‌راته‌عادی بریښیدل ځکه
چه‌برنارد کوترل د ښکلی ښځی

په غیاب کښې دلسو ورځو ناروغی نه وروسته مړ شوی دی ګواکې دزړه ددرېدو په ناروغی مړ شوی ؤ. بنکلې ماویس کوترل یوازې پاتې شوی وه یوه روحانی خورچه ماری ژوزف نومیده ددی دمیړه دناروغی په وخت کښې ورسره وه. خپل کار ېې دی ته و بنودخه تحقیقات می ورځخه وکړل دمړی جسد می هم معاینه کړ خو غیر طبیعی څه شی می په کښې پیدانکړل بیا په ډکتور پسی ولاړم مګر نه چمتو کیده چه له خپلی عقیدی څخه لاس واخلی او دبرنارد کوترل مرګ یې خپل حیثیت او شخصیت ته ستره لطمه ګڼله. بیا کورته لاړم بنځه اولور می دواړه کنسرت ته تللی وی نه پوهیږم څنګه دبیمی دشرکت دمشتری بنځه ماویس کوترل راپه زړه شوه او هغه می د خپلی بنځی سره مقایسه کړه؟

زه یو مرتب سړی وم دسهار له مخې به اداری ته تلم او بیګا به خپل کورته راتلم ساتیری می دسرو ګلانو دباغچې کتل ؤ او هغه هم زما په کور کښې وه دغی باغچې به زما علایق له خپلی بنځی اولور سره ساتل خو له هغې ګړۍ نه چه ما ماویس ولید له احساس می کاوه چه په ژوند کښې می کوم شی کم دی او عقیده می لرله چه ماویس به دغه کمبود پوره کړی.

قضیه پای ته ورسیده او بیمه زما د تحقیقاتو دنتیجې په اثر مجبوره شوه چه دبیمی پیسی دمتوفی بنځی ته ورکړی خو زما دپاره ماجرا ختمه نه بلکه نوی شروع شوه. په اخلاقو کی می ورځ په ورځ تغییرات راتلل بنځی اولورته به می هره ورځ بهانی لټولې. بنځی می له خپل پلار څخه یو څه شته منی په میراث کښې راوړی وه خو ما به له هغی سره غرض نه کاوه او بنځی می عقیده لرله چه داشتمنی به یوه ورځ راپه کار شی. له هغه وخته چه زما په اخلاقو کښې تغییر راغی بنځی اولور می زما په کار کښې کارنه پیدا کولو او داسی بنکاریده چه زه اوس دخپلی کورنۍ دپاره یو اضافه ګی غړی یم بالاخره دشلو ورځو وروسته بیا دماویس کورته ورغلم ددغه ورتګ محرك همغه دکمبود ی احساس ؤ

ماویس خیال وکړ چه زه بیا دبیمی شرکت وراستولی یم خو ما ددې اشتباه لیری کړه او ورته ومی ویل راغلی یم که کوم کارمی له لاسه وشی تاسو ته یې وکړم خرنګه چه دماویس دمیړه کور لوی ؤ او کرایه یی هم ډیره کیدله له بلی خوا دبیمی پیسی هم دومره ډیری نه وی چه ددی پوره ګوزاره وربانډی شوی وی، نوداهم دبل کورپه لټون کښې وه ماورسره وعده وکړه چه په دی کار کښې به ورسره مرسته وکړم. یو څه موده په کور پسی وګرزیدم ورته پیدا می نکړ یوه ورځ چه ددې لیدو ته ور غلم له ما سره یې سرسری پیش آمد وکړ چه زه وربانډی ډیر خواشینی شوم او ددې په دغه وضعیت می اعتراض وکړ

ورته ومی‌ویل‌زه‌ستانوکر نه‌یم‌بلکه
دوست دی‌یم ددې خبری سره په
قهریی له‌کوره ووتم خوطاقت می‌ونه
شو اوبیرته ورغلم دی دزړه په‌قوت
ماته‌وویل .زه پوهیدم چه‌ته به بیرته
راوگرزی .

زه بیا دی‌ته دکور پیدا کولو په
لټه کښې‌شوم خوزړه می‌نه‌غوښتل‌چه
دی‌ته بل کورپیدا کړم اوداله دغه
ځای نه‌بل ځای ته ولیږدوم ځکه
زه پوهیدم چه دټولنی لیوان‌به‌ورته
ځك اووینې شی‌نو ماغوښتل‌چه‌دا
یوازی اویوازی زما وی .ددې‌اعتماد
ورو، ورو زما په‌نسبت ډیر یده‌او ما
ته‌به‌یی د (تاسو) په ځای (ته) خطاب
کاوه خپل تیر درد ناك حال‌ونه‌یی‌ماته
وویل خوزما دژوندانه دوضعیت او
شخصی چاروپه‌باره کښې‌یی کومه
پوښتنه ونه‌کړه بالاخره د ډیر و
امیدونو او آرزوگانونه وروسته‌ددغی
طنازی دلبری په وصال کا میاب
شوم نور می نو ژوند د همدی
دپاره وقف شو اود همدی می
پرستش کاوه او له همدی نه
ویریدلم. ډیر و ختو نه می له‌دی
سره تیرول اود خپلی ښځی او
لور له حال نه ډیر لږ خبریدم.
دښځی او لور زړه هم را څخه
سوړ شوی‌ؤ ځکه زما معنوی
اړتیا وی زما د ښځی د توجه وړ
نه‌وی ز ما ټول حقوق دی د خپل
ځان له پاره لګول او ماته به یی
ډیری لږ؟ پیسی پر ینښو دلی.
دما ویس ژوند هم هو سا نه ؤ
دی با ید د ستنی په کار یو څه
ګټلی وی په زړه کښی به می را
تیریدله کشکی زه شته من وی
او ددی د پاره می ښه ژوند برابر
کړی وه. بالاخره د میلاد داختر
شپه راغله په دی پلمه چه دخپل
یو ملګری په کاله کښی‌میلمستیا
ته بلل شوی یم له کوره ووتلم
نیغ دما ویس کور ته ور غلم او
هغه هدیې می ور کړی چه دخپل
زړه په وینو می برابری کړی‌وی.

لږ،لږ ددی خبر ی هو س را ته
پیدا شو چه له ښځی نه می جدا
شم او له ما ویس سره چیر ته
وتښتم خو داکار عملی نه‌ؤ
ماویس ډیر ښه ږغ در لود ډیر
اصرار او زحمت په نتیجه کښی
می دادی ته چمتو کړه چه سندر
غاړی شی په دی و خت کښی
دږغ یو ښو ونکی سینیور ریز یو
لندن ته راغلی‌ؤ ده عقیده لر له‌که
چیری ماویس دری کاله له‌ده‌څخه
داوازؤیلو درس ووایی نو ډیرښه
سندر غاړی به شی. خو استادزر
لیری حق الزحمه غو ښتله ز ما
خیال داؤ چه دا یو ځل سندر
غاړی شی نو بیا به دواړه چیری
تښتو اود نیکمر غی ژوند به‌سره
تیروو.

خوماپه‌دغه‌وخت‌کښی له پنځوسو
لیرو نه زیاتی پیسی نلرلی څپلو
وروښو ته ور غلم هغوی د پیسو
په مقابل کښی و ثیقه غو ښتله
آخر می داسی کار و کړ چه هیڅ

کله می باید نه وی کړی یو ز ر او دوه سوه لیـری مـی دبیـمی د شر کت له صندوق شخه‌ووهلی او هغه می ژر په فرا نسوی‌پیسو بدلی کړی او ریــز یو تــه مــی ور کړی.

د مو سیقی ښــو و نــکی خپله شا گرده له انگلستان شخه بوتله او ما تر در یو کا لو پوری‌ماویس ونه لیدله. ماویس د تگ نه‌پخوا خپل یو راز ما ته فاش کړ اوویی ویل چه ددی میړه به دا د پیسو گټلو د پاره د نــو رو غیرو تــه سپارله او دی هم هغه په زهــر وواژه. زه و پو هیدم‌چه‌زمانښکلی ماویس قاتله همږه د خپلو کړونه پښیمانه شوم خو کار می له‌لاسه شوی‌ؤ.

سبا سهار تو لو ورځ پاڼو زما داختلاس خبر په غټو تورو کښی چاپ کړ بیا زه تو قیف او تــر محاکمی لاندی و نیول شوم او په دری کاله بند محکوم شوم کومی ورځی شپی چه ما په بندی خا نه کښی تیری کړی دی تا سو ته‌یی له دی کبله چه جالبی نه دی نه لیکم.

زما دملگری خوږه قصه په د غه ځای پای ته رسیدلی وه خر نگه چه (سنیو ر ریــز یــو) مشــهور موسیقی پوه‌ؤ د مو سیقی اخبار په کو مك د هغه پــه لټــه کښی شوم را ته خر گنده شوه‌چه‌اوس په‌انگلستان کښی دی دشنبی په شپه‌یی د ملکی په سالون کښی کنسرت در لود او غو ښتل یــی چه خپله نــوی شا گــرده ما دام «ژانس»معرفی کړی.دامادام ژانسی هماغه ماویس وه یقین می درلود چه روجر به هم هلته وو‌ینم‌اتفاقاً حدس می درست راغی ما ویس می ولید له اواوازیی می واو ریده رښتیا رو جر حــق در لــود چه دماویس د پاره دو مره‌کــړاوونه وزغمی اوس دا هنر منده شوی ده او روجر یی په‌وجود افتــخار کاوه . رو جر ویل نور نه غواړی چه په ماویس‌پسی وگرځی ځکه چه اوس ددوی دواړو تــر منــځ فاصله پیدا شوی ده ځکه دا یوه هنر منده ښځه ده چه دټولودتوجه وړده او دترقی مدارج وار په وار طی کوی مگر روجر ورځ په ورځ د انحطاط په لوری درومی .

یوه میاشت وروسته زما دکور د تیلفون زنگ ووړنگیده دپولیسو افسر ماته خبر راکړ چه رو جر داورگاډی په یوه حادثه کښي مړ شوی دی او په جیب کښي ئی یو کاغذ شته چه هغه ستاسو پــه عنوان لیکل شوی دی .

کاغذ می چه ولوست په هغه‌کښې هغه خدای پامانی لیکل شوه وه چه روجر غوښتل زما‌په وسیله یی له ماویس‌سره وکړی دده‌دوصیت له مخی ما ویس ته ورغلم دروجر دژوندانه جریان می ورته ووایه په سترگو کښې یې اوښکې راټولې

شوی . څو موده وروسته می په ورځ پاڼو کښې ولوستل چه دروجر دبنځولو په ورځ یی بنځه (اوا) دزړه دسکتې په اثر مړه شوی‌ده.
«بنګه» یو مشهور رومانتیك اثر دی خو په حقیقت کښې یی ارزښت دشهرت په اندازه زیات نه دی.

## پل اوویر ژینی

### د دوسن پی یر اثر

دا کتاب په ۱۷۸۷ کال کښې یعنی د فرانسی دلوی انقلاب نه دوه کاله دمخه خپور شوی دی مؤلف یی فرانسوی ناتو رایست لیکوال برناردن دوسن پی یردی. دی په ۱۸۳۷ کال کښې په لوهاور کښې زیږیدلی‌دی اوپه۱۸۱٤ کال کښې مړ شوی دی دی لومړی دنظامی مهندس په صنف کښې بی له دی چه کامیابی یی په نصیب شي په خدمت کښې‌شامل شو بیا هالند روسیی لهستان او آلمان ته د مناسب کار پیداکیدو دپاره لاړ په ۱۷٦۹ کال کښې ایل دو فرانس‌ته چه‌اوس دموریس ټاپوبللی کیږی په ماموریت لاړ او هلته یی د مهندسی په کار پیل وکړ. بیرته‌پاریس‌ته‌دراتګ په‌وخت کښې خارجی‌ښکلومنظرو اومنطقو مسحور کړی‌ؤ د معروف‌فرانسوی فیلسوف ژان ژاك روسوپه‌تشویق سره یی خپل آثار لکه ( ایل دوفرانس ته‌مسافرت ) په «طبیعت کښې مطالعات » ولیکل او بیایی د « پل اوویر ژینی » داستان ولیکه دغه‌داستان چه‌دده شاهکاری دی هم یی مشهور او هم یی غنی کړ . په ۱۷۹۰ کښې یی « د هندی جونګړی » داستان خپرولوته ملاوتړله په ۱۷۹۲ کال کښې دپاریس دنباتاتو دباغ دآمر په حیث مقرر شو اوپه ۱۷۹۵ کښې دفرانسی‌دانستیتوت غړی شو دناپلیون د امپراتوری په دوره کښې ښه ولمانځل شو خودغه امتیازدی مغرور اوبدخلقه هم کړ مګر غرور یی دده د هغه کتاب لطف کم نه کړ « دطبیعیت هم آهنګی » په نامه یی په‌هماغه وخت کښې خپور کړ .

برناردن دوسن پی یرنه پوهاند دی او نه‌متفکر او نه دعلم‌الاجتماع عالم خو ځینی خاصې عقیدی لری چه له دلچسپی نه خالی نه دی . دده په عقیده خدای نړی یواځی دبشر دپاره پیدا کړی ده دسند داوبو سپین څګونه او دساحل دغاړی توری تیږی یوازی ددی لپاره دی چه بیړی چلونکی له لری څخه له‌تیږو سره دټکرخوړلو خطر حس کړی په خټکیو او هندوانو دپاسه طول‌البلد کرښو ته ورته خطونه ځکه رابنکل‌شوی دی چه هغه په آسانی سره د یو کور دغړیو تر منځ وویشلی‌شی.
دغه سړی چه ددایرة‌المعارف لیکونکو ته ورته کسانو په‌عصر کښې یی ژوند کاوه او د لوفن غوندی شخصیت سره یی مراودی لرله چه‌لمرد‌ځمکی دچارپیرچورلی په‌استوائی منطقه کښې دمځکی له

بـر جستگـی خـخه منـکر ؤ او د جـز ر ا و مـــد عــلت یی دقطبی اوبوواوره کیدل او ویلی کیدل گاڼه . اجتماعی عقاید یی دروسو عقاید وته ورتهؤ نیکمرغی اوفضیلت یی د اجتماع نه دباندی تصور کاوه ـ ده عقیده لرله چه بشر په ټولنه کښې نشي نیکمرغه کیدلی او نه فضیلت پیدا کـولی شي دغه مواهب یوازی په انزوا او دطبیعت په غیږ کښې میسر کیدلای شی . چه دهمدغی فرضیی په اساس یی خپل مهم شاهکار « پل او ویر ژینی » لیکلی دی .

**داستان :** ډیر کلونه دمخه په ۱۷۲۶ کال یو زلمی دولاتور چه یوماجرا جو اوسیاح زلمیؤ لـه خپلی ځوانی ښځـی سره یـوی متروکی جزیری ته راغی ډیره موده تیره نشو چه زلمی مړ شو اوخپله حامله ښځه چه دژوند هیڅ وسیله نهلری یوازی پریښودله «میرمن دولاتور» مجبوره شوه چه له یوی تور پوستی مینځې سره د هغی جزیری په یوه تنهایی ځای کښې اعتکاف غوره کړی او هم هلته ددی یوهلورپیداشوه چه د «ویر ژینی نوم یی وربراندی کینښود .

دانجلی ډیره ښکلی وه یوې بلی ښځی چه دیو دهقان برتانی لوروه او مارگریت نومیدله دخپل یـو بوډا غلام «دومینك» او کوچـنی ماشوم سره چه «پل» نومیده په هماغه ځای کښې ژوند کاوه .

دا ښځه یوه زلمی غولولې وه او په هغه جزیره کښې یی یوازی پری ایښی وه اوپه خپله دی ورخخه تښتیدلی ؤ . دا دواړه ښځی یوبل سره پیژنی او بیایی تـر منـځ دوستی پیدا کیږی دواړه ښځـی خپل شته ـ خدمتگار او ماشومان سره راغونډوی او یوه شریکـه کورنی جوړ وی په غم او شادی کښې هم سره شریکانـی کیـږی ماشومان پل او ویر ژینی پخپلو کښې سره علاقه پیدا کـوی او دواړه دطبیعت پـه لـمن کښـې رالویږی د ماشوم توب دوستی په ځوانی کښې په مینی او عشق بدلیږی دواړه کورنی اوس یودبل له اسرارو نه خبر دی غلام اومینځه ورته دکرنې اوباغ داری کارونه کوی دوی له خپلو نورو گاونډیانو سره حسنه روابط ټینگوی حتی دجزیری د مقاماتو د احترام او توجه وړ هم گرځی .

پل او ویر ژینی د گډ ژون تړون کوی تصمیم نیسی چه په گده سره به داسی ژوند کوی چه په هغه کښې به فریب او ټگی نهوی.

په دی وخت کښې د ویر ژینی بډایه او اشراف زاده عمه چه په پاریس کښې ژوند کوی دایلدو

فرانس په جزیره کښې د خپلی ښکلی ویر یری څخه خبریږی او دانبه گنی چه هغه د اروپا متمدنی ټولنی ته را وبولی او په ښوونځی کښې یی شامله کړی بی وزلی موریی سره ددی چه د خپلی لور

بیلتون نه شي زغملی خو ددی
دپاره چه ویر ژینی د کورنـــی
یوازینی وارثه ده نو ویر ژینـــی
پاریس ته استوی او دایی بیاپه
بیلتانه کښې اوښکی تویوی اوپه
دی ترتیب سره دوه مینان سره
جدا کیږی پل د ویر ژینـــی پـــه
بیلتانه سره ډیر خواشینی‌کیږی.
بالاخره یوه ورځ پل خبریږی
چه ویر ژینی سره ددی چه ډیره
موده یی په پاریس کښې تیره
کړی ده خو دمتمد نو خلکو لـــه
خویونو سره تر اوسه آشنایـــی
نه لری نو ځکه غواړی چه بیرته
جزیری ته راشي ــ دغه خبر دواړه
کورنی ډیری خوشحاله کړی او
جشنونه یی وربانده جوړ کړل.
پل ساحل ته دویر ژینی د هرکلی
دپاره ورځی خو دغریبانو نصیبه
له غمونو نه پرته په خوشحالیو
کښې نه‌وی په هغه وخت کښـــې
چه د ویر ژینی بیړی ساحل تـــه
نژدی کیدله یو مهیب طوفان را
پیدا شو او په بیړی کښې‌ناست
کسان چه ویر ژینی هم په کښـــې
وه په اوبو کښې لاهو شول . مین
پل کتل چه بې وزله محبوبه یی
د اوبو په څپو کښې دده له نظره
ډوبیږی خوله بده مرغه‌هیڅ‌مرسته
ورسره نشی کولای .
دغـــه کتاب د هـــغو مهمو پیښو
دبیانوله کبله چه‌دفرانسی دلوی
انقلاب نه د مخه پیښی شوی وی
او مهمی اجتماعی خړ پړ تیاوی
پکښې‌راغلی‌دی ډیره زیاته‌کامیابی
وګټله دیوی عشق قصی غم لړلی
انجام‌بنایی له ډیروستر ګواوښکی
بیولی وی دکتاب نوی لحن خلك
ډیر ورجلب کړل ددغه کتاب له
لیکلو څخه د دوسن پی یر مقصد
دهغونباتاتو، توصیف‌او شرح‌کول
دی چه له اروپا نه پرته په نورو
ځایو کښې پیدا کیږی او بیادهغی
ټولنی نه فرق لری دغـــه کتاب
درومانتیك عصر ته د ادبـــیاتـــو
دواړه کورنی اوس یو دبل لـــه
داخلیدو نمونه ده .

## [illegible] ژو

### د مولیر ژان باتیست اثر

تار توف یوه کمیدی ډرامه ده چه
دفرانسوی لوی لیکوال مولیرژان
باتیست پو کلن یو شاهکار دی.
مولیر په ۱۸۲۲ کال پـــه پاریس
کښې زیږیدلی داسی ګڼل کیده
چه دی به هم د خپل پلار کسب
غالی پلورل و نیسی کله چه دی
ماشوم ؤ په کـــلرمون (دلـــویـــی
کبیر په ښوونځی ) کښې شامل
کړی شو. مولی‌یر په‌هغه‌ښوونځی
کښې چه دخپل عصر ډیـــر مهم
ښوونځی‌ؤ ابتدایی تحصیلات‌سرته
ورسول بیاله حقوقو څخه فارغ
شو او په اورلئان کښې د خپل
بری لیك په اخیستلو کامیاب شو.
بیایی سوګند وکړ چه د خپل‌پلار
کسب ته ادامه ورکړی دی ددربار
خصوصی پیش خدمت مقرر شو

په دی وخت کښې یی د دوستانو نفوذ یعنی دبـژار خـویندو پـه تیره داکتوری مادلن بژار تشویق دده د ژوندانه مسیر ته تغییر ورکړخو داتغییر یی دده دراماتیکی قریحی او استعداد محصول همؤ په دی وخت کښې ده خپل پلارته یو لیك واستاوه او په هغه‌کښې یی ورته ولیکل کومه برخه چه دده موریی لری هغه دی ده تـه ورکړی ځکه دی نه غواړی چـه نور درباری فراش وی بلکه غواړی چه نه بژار او څو تنو نورودوستانو سره یی یوه صحنه د «نامـدار تیاتر » په نامه تاسیس کړی .

ددغه کار آغاز ډیر خطرناكؤ خو دهاوملګرو یی ترآخره‌خپل تصمیم‌عملی کړ دوی د فرانسی جنوب ته‌لاړل دخپلو سامانودنقلولو له‌پاره یی یوه کراچی لرله د دولس کالونه وروسته چـه بیرته پاریس تـه راغلل نو جیبونه یی د پیسو نـه ډکؤ او د شهرت آوازه یی هری

خواته خپره شوه(۱۶۵۸) مولی‌یر په‌دغه وخـت کښې ۳۶ کـلن ؤ اوکلا سیکو تحصیلاتو په ده باندی د شعر د دنیا دریڅه پرانستی‌وه. دکلو کلو فلاکت او سرګردانی ده ته ګټوری تجربی په‌لاس‌ورکړی وی او ده ته یی داسی بصـیر ورښلی ؤ چه اشیا او اشخاص یی ښه ورباندی پیژندلای شوه دده په خیر بل لیکوال د ژوند په ښوونځی کښې دومره نه‌ؤ بریالی ده د خپلی لومړنی کمیدی ډرامی‌په ښودلو سره د ۱٤ لویی دوستی جلب کړه او پاچا دده طرفدار شو . څومره به چه مولیر پخپلو ډرامو او ننداروکښې بریالـی کیده هغومره یی د دښمنانو او رقیبانو حسادت ور سره زیاتیده په دغو حاسدانو کښې یی شاعران نقادان ، کشیشان خانان او نجیب زادګان هم شامل وو چه مولی‌یر د هری طبقی د حاسدانو درسوا کولو دپاره خپل شاهکارونه‌منځ‌ته راوړل مګر پاچا او نورو لـو یو کسانو لکه بوالو او لافنتن یی‌ټل ملاتړ کاوه او ده ته به یی جرأت ورکاوه . دی د خپلو مبارزو په ضمن کښې مجبورؤ چـه خپلی عایلی اکتورانو او د تیاتـر کار کونکو ته ډوډی هم پیدا کړی او پاچا هم وخندوی .

سره ددی دده خصوصی ژوند ډیر تریخؤ ده یوه ښځه لرله چه له ده څخه ۲۱ کاله کشری وه همدغه نا مناسب ازدواج دی ډیر ځوراوه که څه هم مولی یر ذاتاً حساس سړی نه‌ؤ خـو د خپل فاسد محیط نه چه دی پکښې‌ژوند کولوته مجبور ؤ ډیر ځوریده یو وفادار دوست یی (راسین) د توقع نه خلاف ورسره خیانت وکړ او دده دتیاتر تکړه لوبـغاړی یـی ورڅخه بیل کړل او خپل تیاتر یی هم دده مخالفی ډلی ته ورکړ .

سره ددی هم مولی یر د ټولنی
د خندولو نه لاس وانخیست او
خوله یی له موسکا ځخه را ټوله
نشوه . آخر دیوی لوبی د لوبولو
په وخت کښې چه موسکایی پــه
شونډو کښې وه د مرګ لومړنی
لړ زیدنی یی په وجود کښې را
ښکاره شوی (۱٦۷۳) . دوه تنه
کشیشان ورته راوبلل شول خو
هغوی دده له تقدیس ځخه غاړه
وغړ وله جسد یی هم د مځکی په
مخ پروت ؤ او په متبرك ځای کښې
یی دښخولو اجازه نه ورکول کیده
خو آخر د مولی یر بی وفا کونډې
ځان د پاچا په پښو کښې واچاوه
اوله هغه ځخه یی فرمان واخیست
چه دغه لوی هنر مند بی قبره پری
نژدی. سره ددی هم دی دتیــارو
خلکو له ویری په شــپه کښې
خاوروته وسپارل شو .

**تارتوف** : که ځه هم مولی یر
نور شاهکارونه لکه د ښځو
مکتب (۱٦٦۲) ــ دن ژوان ۱٦٦٥
له خلکو بــیزار ۱٦٦٦ خسیس
۱٦٦۷ نجیب زاده ۱٦۷۰ پوهــی
ښځی ۱٦۷۲ خیالی مریض ۱٦۷۳
او نور لری خو دتارتوف ډرامــه
له دی نظره چه دیوې ډلی خلکو
په ضد مؤثر انتقاد دی له نورو
ډرامو ځخه ډیر جالبه ده . ددغی
ډلی غړی جاسوسان او دعقایدو
مفتشین دی په دغه درامه کښې
(۱٦٦٤) ــ (۱٦٦۹) یــو ارګون
نــومی سـړی دوه زا مــن چــه
د امیس او ماریان نومیږی لری .

اورګون دیوی ښکلی نجلــی
سره چه المیر نومیږی واده کوی
داورګون ژوند له خپلو دووبچیانو
او یوی ښځی او خپلی مور سره
چه پرنل نومیږی په نیکمرغــی
تیریږی لیکن کله چــه یوکشیش
تارتوف دغه کورته چه دی هلته
یومتدین سړی ګڼــل کــیږی لار
مومی د هغه کورنیکمرغی له منځه
درومی .

دامس او ماریان د اورګون‌زامن
او د ده ښځــه المیر د الــمیر
ورور کلسانت چه د کورنی له
نورو غړو ځخه هوښیار ښکاری
تارتوف ته د یو ریاکار کشیش
په سترګو ګوری او پو هیږی هغه
کړه وړه چه تارتوف یی کوی
دواقعی مقدسینو له تقوی ــ پرهیز
ګاری ځخه د مځکی او آسمان‌فرق
لری .

کشیش د اورګون زړه ته‌داسی
لار پیدا کوی چه هغه تصمیم‌نیسی
خپله لور ماریان ده ته واده‌کړی.
خو ماریان له یو بل زلمی سره
عهد او پیمان کړی دی . دماریان
د میری‌المیر مداخله چه کوشش
کوی اورګون له دغه کار ځخــه
منصرف کړی . د تار توف شیادی
نیرنګی اوریا کاری له یوی خوا
او د اورګون سادګی او تعصب‌له
بلی خوا ښی صحنی ښیی .

تارتوف المیر سره پــه خپل

ملاقات کېښي دا پخپلو اسرارآمیزو خبرو غولوی او دا ښځه د نجلی درضانه مخالف کار ته راضي کوی چه د دواړو واده ته زمینه برابره کړی .

دامیس پټ ولاړ دی او ددوی خبری اوری دی ځی خپل پلار له موضوع نه خبر وی خو پلار یې ورته په قهر کیږی او دی له کوره وباسی اودی دپاره چه خپل عقیدت دروحانی پلار په نسبت ثابت کړی خپل مایملك هغه ته ورکوی ــ آخر المیرهم دتاتوف په شیادت پوهیږی او خپل میړه چیرته پټ د هغه دخبرو د اوریدوله پاره دروی او بیا ورځی په ډیر مهارت د تارتوف دخولی نه خبری وباسی اوس نو اورګون ته دتار توف د نیرنګی او فریبکاری په باب شك نه پاتی کیږی له پټ ځای نه ورځی اوریا کار کشیش له ګریوانه څخه نیسی غواړی چه هغه له کوره وباسی مګر تار توف کله داسی په آسانی وځی .

دی ددی په ځای چه خجالت وباسی ډیو حسابی کور واله لهجه خپلو خبروته ورکوی او اورګون په دغه کور کېښي پردی سړی بولی ورته وایی چه ته په دی کور کېښي حق نه لری او دا کور دی ماته راکړی دی کشیش ارګون نور هم تهدید دوی او ورته وایی له ما سره ستا داسی کاغذ ونه موجود دی چه سیاسی جنبه لری او تا په خپله هغه ماته راکړی دی که زه هغه لیکونه پاچاته وښیم نو ورځ به دی ډیره بده کړی .

اورګون دکشیش په ایستلو زور اچوی تار توف ځی او پا چاته کاغذونه وروړی د مولی یر په قول « که چیری د داسی پاچا په عصر کېښي یی ژوند نه کولای چه هغه د نیرنګ د روغو او قاچاق دښمن دی » نو دبیچاره ارګون دپاره په ستر مصیبت پیدا شویؤ کشیش په پوره سماجت ارګون تر ګریوان نیولی او هغه تر عدالت پوری رسوی او د هغه جنایت کار په نامه یی معرفی کوی چه عدالت له ډیری مودی را هیسی یی په لټه کېښي دی لیکن عادل او رعیت پرور پاچا د اورګون پخوانیو خدمتونو ته نظر کوی او د اورګون له تقصیراتو څخه تیریږی او ماریان طبعاله خپل مین والر سره ازدواج کوی .

## ریستان اوایزوت

### دژوژف بدیه اثـر

د تریستان او ایزوت داستان داسی یو عاشقانه جالب اوښکلی داستان دی چه څو پیړیو څخه تر اوسه پوری د اروپا د شاعرانو نقاشانو او موسیقی پوهانو دالهام منبع دی ، دادوو تنو نا کا مو مینو قصه ده چه د تقدیر لوبی د دوی آرزو ګانی د اوبو په مخ کرښه ګرځولی دی .

لوړ پوه او لیکوال ژوزف بدیه د فرانسې د علومو د مرکز غړی ؤ دەزړو روایاتو ته په توجه سره دغه لطیف او شاعرانه داستان لیکلی دی .

دغه لوړ فرانسوی لیکوال او عالم په ۱۸٦٤ کال کښې په پاریس کښې زیږیدلی او په ۱۹۳۸ کال کښې د روم د ایالت په یوه سیمه لوګران سر کښې مړ شوی دی ده په ۱۹۰۳ کښې په کولژ دوفرانس کښې د منځنیو پیړیو د فرانسوی ادبیاتو کرسی اشغال کړه او دخپل استاد « ك ـ یاری » ځای یی ونیوه په ۱۹۲۹ کال کښې په‌پخپله دهغی مؤسسې رئیس مقرر شو ددغه لیکوال آثار هغه نوی نظر دی چه د فرانسې د منځنی پیړی په ادبیاتو شوی دی . ده په خپله یوه تحقیقی رساله «افسانې» کښې ورکوی .

چه په ۱۹۰٤ کال کښې یی لیکلی ثابته کړی ده چه‌دمنځنی پیړی د افسانو ریشه فرانسوی ادبیات دی . ددغه پوهاند مهم کارهغه مجموعه ده چه‌د «حماسی افسانی» تر عنوان لاندی لیکلی ده . ده په دغه اثر کښې «له حرکاتو سره د حماسی نغمو » په باره کښې دپخوانیو پوهانو نظریی باطلی کړیدی (۱۹۰۸ ـ ۱۹۱۳).

دغه لیکوال د تریستان او ایزوت خوږ او په زړه پوری داستان په نوی متن لیکلی او د «رولان نغمه » کتاب یی تصحیح کړی او انتقادی

څیړنه یی وربان‌دی کړی ده ده له ۱۹۲۳ څخه تر ۱۹۲٤ پوری دپل هازارپه ملګرتیادفرانسی‌دادبیاتو تاریخ په دوو جلدو کښې ولیکه‌دی (په ۱۹۲۰) کال کښې د فرانسې دعلومو د مرکز په غړیتوب منل شوی دی .

## تریستان او ایزوت

داستان داسی شروع کیږی چه په پخوا وختو کښې یو عادل‌پاچا چه «مارك شاه» نومیږی‌د «کورنوا» په هیواد حکومت کوی ـ غلیمان په دغه پاچا حمله کوی کله چه دلونوا پاچا ریوالن په دی موضوع خبریږی له خپلو عسکرو سره‌له سیند څخه پوری وځی او له‌مارك شاه سره مرسته کوی . مارك‌شاه دده ددغه خدمت په مقابل کښې خپله خور «سپین ګله»ریوالن ته ورکوی .

ریوالن په یوه معبد کښې سپین ګله ځان ته ناوی کوی خو دی لاخپل کورته نه دی رسیدلی چه داسی خبرورته راځی چه پخوانی غلیم دوك دو مرګان یی په هیواد یرغل کړی او ورانی یی پیښ‌کړی دی . ریوالن خپله ښځه سپین ګله خپل یو سردار روهالت ته سپاری اودې‌جګړی‌ته درومی‌سپین ګله حامله شوی ده دخپل میړه په انتظار کښې ناسته ده خو افسوس چه هغه بیرته ورته نه راځی سپین ګله د غمونو او اندیښنو حال کښې زوی زیږوی خو څرنګه چه دغه ماشوم د غم‌په

ورځــو کښې پیـدا شــوی دی د «تریستان» نوم وربانډی بږدی غلیم ټول هیواد نیسی او روهالت له دی کلبه چه تریستان مړنه‌کړی دی خپل زوی معرفی کوی او له خپلو نورو زامنو سره یی یو ځای تر روزنه او پالنه لاندی نیسی .
له اوو کلونه وروسته تریستان یو استاد ته سپاری چه ورته درزم او بزم هنرونه وښیی .
داسی ورځ راځی چه ناروژی سوداګر تریستان له ځان ســره تښتوی په لاره کښې یی بیړی طوفانی کیږی خو تریستان تر ساحله رسیږی دی دکورنواهیواد ته چه پاچایی خپل ماما مارك شاه دی خو تریستان له دغه راز څخه خبر نه دی رسیږی .
ناڅاپه دی د پاچا هغوښکارچیانو ته په مخه ورځی چه په یوه‌هوسی پسی منډی وهی . تریستان دغو ښکاریانو ته د ښکار چل ښیی او دوی نیغ پاچاته ورولی . مارك شاه چه دی وینی وربانډی ګرانیږی.
څو مــوده و روسته رو هالــت خبریږی چه تریستان په کورنوا کښې ژوند کوی هملته پسی‌ورځی هغه سوریاقوت چــه مارك شاه خپلی خورته د زفاف د نفسی‌هدیی پحیث ورکړی‌ؤ ده ته ښیی اوده ته وایی چه تریستان ستا خوریی دی او دوك دو مرګان ستا اخښی وژلی او مملکت یی نیولی دی .
دادی اوس هغه وخت راغلی دی چه دلونوا هیوادیی خپل حقیقی وارث ته‌وسپاری‌مارك‌شاه‌تریستان ته یو لښکر یرابروی او دی دخپل پلار دقاتل او دښمن پــه وژلو کامیابیږی او هیواد ورڅخه نیسی خو څرنګه چه له خپل ماماه سره یی ډیره مینه پیدا شوی ده مملکت روهالت ته دهغه د خدمتونو په بدله کښې سپاری او په خپلــه بیرته مارك شاه ته ورځی .
کله چه دی ورسیږی د ایرلنډ پاچا خپل یو قوی پهلوان مارك شاه ته د کالنی خراج د اخستلو دپاره وراستولی دی . آیرلنډی پهلوان توره په لاس کښې خبری کوی او د خراج په دود دری سوه ښکلی هلکان او دری سوه ښکلی نجونی غواړی .
او که نه د جنګ نه پرته بل منطق وجود نه لــری . هیڅــوك دجګړی جرأت نه‌کوی خوتریستان جګړی ته چمتو کیږی دا جـګړه د خلکو له نظره په یوه لیری‌جزیره کښې د دوو پهلوانانو تر منـځ کیږی آخر تریستان کامیابـیږی ده، په ویاړ جشنونه جوړیږی خو په ایر لند کښې دایر لنډی پهلوان په مړینه عمومی ویر جوړ شوی دی .

« شهزادګی » پهلوان خور او سپین مخی د طــلایی ویښتانــو خاونده «وایزوت» دپهلوان خورڅه دده په مړینه اوښکی تویوی او

او ژاړي،دوی ښه ملهمونه‌لري‌خو
پهلوان نه شي روغولی له بلي‌خوا
تریستان هم سخت ټپي شوی‌دی
په خپله د تریستان د غــوښتني
سره سم دی په یوه بیړۍ کښې
کښینول کیږی او دا اوبو څپوته
سپارل کیږی دی اوس یوازی یو
ملګرۍ لری چه هغه دده چنګ دی.
په داسي حال کښې چه چنګ‌وهي
او سندري وایي دی دآیرلند هیواد
ته رسیږی ددغه هیواد په ښار
کښې د طلایي ویښتانو خاونده
ایزوت د زخمونو روغولو ملهمونه
لري . نه تریستان پوهیږی چه
ددښمن هیوادته ورغلی اونه‌ایزوت
پوهیږی چه دغه زلمی ددی د ماما
قاتل دی ایزوت زلمی ته درمل
ورکوی او دده ټپو نه روغیږی‌بیا
وروسته دپیژندنی له ویری نــه
بیرته د خپل ماما هیواد ته‌درومي
دی په پاچا له هرچانه زیات‌ګران
دی اوپه زړه کښې یی دی چه یو
وخت نه یو وخت دی‌په خپل ځای
کښینوی .

کینه کښی کسان تریستان پــه
جادوګری تومتي کوی او له‌پاچا
نه غواړی چه واده وکړی او هیواد
ته یوولی عهد وړاندی کړی پاچا
خو اول په دی خبره نه راضي
کیږی خو آخر د طلایي ویښتانو
خاوند هغه زړه وړونکی پیغله چه
ده ته یی د خپلو ویښتانو کوڅي
په سوغات کښــې رالیږلـی دی
غواړی تریستان پاچاته د خپل

ارادت ثابتولو له امله سوګندکوی
چه د طلایي ویښتانو میرمن بــه
ورته حاضر وی . دی څــو تــنه
پهلوانان د سوداګرو په جامه‌کښې
له ځان سره بیایي او په بیړۍ
کښې ایرلند ته ځی .

هلته دغه آوازه اوری چه یولوی
اژدها هره ورځ یوه نجلۍ له ښار
څخه وړی او بیایي خوری اوپاچا
ویلي دی‌چه خپله د طلایي‌ویښتانو
خاونده لورایزوت‌هغه چاته ورکوی
چه دغه ښامار مړ کړی تر اوسه
شلو تنو پهلوانان ځانو ددغه‌هوس
دپاره قرباني کړی دی . تریستان
د ښا مار وژلوته مــلاوتړله اوهغه
یی وواژه . خو داژدهار زهریی
په بدن کښې اثر وکړ او په یوه
ګوښه کښې بی هوشه پریووت
دپاچا یو افسر چه په ایزوت‌باندی
مین‌ؤ د اژدهار سر یی غوڅ کړ
او دپاچا حضورته یی ور ووړ او
ورته ویی ویل چه اژدهار ما مړ
کړی دی او نجلۍ باید زماشي .
هیچا په دی خبره باور ونه کړ
او ایزوت هم خپه شوله اووپوهیده
چه دغه کار افسر نه دی کړی نو
دا د اژدهار د حقیقي وژونکي په
لټه‌کښې شوه او هغه‌یی‌دصحرایي
ګیا وو په منځ‌کښی بیامــونــد
وپوهیده چه‌په ځان‌کښی یی‌زهرو
بده اغیزه‌کړی‌ده ملهم یی‌ورکړ‌تر
اوله مرګ څخه‌یی‌نجات ورکړ.تر
دی‌وروسته یی‌وپیژانده‌چه‌داژدهار
وژونکی ددی دماما قاتــل‌هم‌دی.

له‌دی کبله چه په تریستان مینه شوه نود خپل ماما له انتقام‌څخه یی ستر ګی پټی کړی اووده ددغه خدمت په بدل کښی یی دایر لندله پاچا څخه دده‌له‌پاره عفووغوښتله تریستان دغه پیغله دمارك‌شاه له پاروغوښتله څرنګه چه‌ده اژدهار وژلی ؤ هیچایی له غوښتنی سره مخالفت ونه کړنجلی‌یی‌دکور نوا هیوادو ته‌له‌ځان‌سره‌بوتله دنجلی مور دمینی یوه دواله‌خوبو‌ټوڅخه جوړه کړه اودایزوت دایی تـه‌یی ور کړ له چه‌په‌ایزوت اومارك‌شاه دواړوی وخوری‌داکاریی‌ددی دپاره وکړ چه ایزوت او مارك‌شاه تـر منځ تل مینه موجوده وی. اتفاقـا ددایی پام نه‌ؤ تریستان او ایزوت هغه دوا په بیړ ی‌کښی وخوړله‌او دواړه یو په بل سخت مین شول. بیړی دکور نوا ساحل ته رسیږی تریستان ایزوت پاچا ته ور ولی جشنونه جو ړیږی اودوا ده مراسم شروع کیږی خو ایزوت پیغـله نه‌ده‌پاتی شوی اوله تریستان‌سره یی په بیړی کښی مینه رسوا کړی ده دایی دخپلی خطا دجبران کولوله امله دمارك شاه دزفاف خونی ته ورځی اوپه دی ترتیب دایـزوت ابرو اخلی.تردی وروسته دایزوت اوتریستان دمینی اورپه لمبوراځی او غم لړلی صحنی منځ ته راوړی مارك‌شاه په دواړو بدګمان کیږی او امرکوی‌چه‌ایزوت‌دی‌په اوروسو ځوله شی مګر بیاداسی نه کیږی تریستان هم دپاچا دحکم په اثر ځان له یو ګړنګ څخه اچوی مګر مړ کیږی نه پاچا ایزوف‌جزا میانو ته سپاری مګر تریستان دی‌ته‌له دغه شرمناك مرګ څخه نـجات ورکوی .ددغی غم‌لړلی‌ماجرا په‌پای کښی تریستان لیونی کیږی اوپه یوه جګړه کښی ډیر سخت ټپی کیږی اوبیا مری ترده ورو سته ایزوت هم مری.

ددغه داستان ځینی بر خـی د پښتو له یوی فولکلور قصی«مومن خان او شیرینی» سره مشابهت لری مومن خان هم کله چه‌یوبـل ښار ته‌ځی خبریږی چه ددغه‌ښار پـه نجونو یو ښامار امـوخـته شوی دی هغه وخت چه دښار د کوم نواب یا راجه لوردښا مـار ښکارشوی‌ده دادمومن‌خان دملګرو په ډله داسی ناره کوی .

ځوانانو ننګ راباندی وکړئ!

**په سروډ ولیو کښی می وړ ینه**

په سر وډ ولیو کښی مـی‌وړی ښامار می خورینه.

مومن خان ددغی ناری‌په اوریدو سره په غیرت راځی‌او ښاماروژنی مګر ځینی نور خلك خپلی توری دښامار په‌وینو سرې‌کوی‌اوغواړی چه دښامار وژلو افتخار ځان تـه حاصل کړی مګر حقیقت پټ نه پاتی کیږی او را جه مومن خان‌د ښامار دوژونکی په حیث پیژنـی او خپله لور همده ته‌ور کوی.

# ددوریان ګری تصویر

## داسکار و ایلد اثر

ددور یان ګری تصویر دانګلیسی لیکوال او شاعراسکاروایلد اثر دی دغه اثـر د انګلسـتا ن پـه ادبی ،اجتماعی او اشرافی ټولنو کښې عجیب انعکاس وکړ چه پهنتیجه کښې‌یې لیکوال بندی شو .

اسکار وایلد په ۱۸۵۵ کال کښې دایرلند پهپای تخت دوبلین کښې زیږیدلی دی اوپه ۱۹۰۰ کال کښې په پاریس کښې مړشوی دی وایلد دومره ښکلی ځوان ؤچــه ددرس ملګری یی‌تر خپل تاثیر لاندی راوستلی وو.دی دزده‌کړی‌له‌وخته له سادګی نه بیزاره ؤاو تل‌به یی له‌شاعرانه اوپیچیده افکارو سره علاقه لرله ده‌له ښکلا نه پرته نور شیان دومره ډیر نه خوښول پلار یی یومشهور آوهوس باز ډاکتر ؤ.

کله‌چه اسکاروایلد له‌پوهنتو ن څخه فارغ شو په تشولاسو لندن ته راغی وایلد نه په اشرافوانو پـه متوسطو طبقوکښې مخ‌درلود څکه هر چادی فاسد الاخلاقه سړی‌ګڼلو . دده کړو وړونه یوازی داچه دغه توهمات یی نشو ورکولی بلکه له ده سره دخلکو دښمنی ورځ پـه ورځ زیاتیدلی ددی سبب داؤ چه وایلد له آدابو او عنعناتو سره مخالف ؤخپل نبوغ یی‌له عرف او قوانینو څخه لوړ باله په‌دی وخت کښې ده‌له‌یوزلمی‌لارډالفرددوګلاس سره آشنایی پیداکړه دغه زلمی یو خاصه قریحه لرله اوپه‌عین‌حال کښې یوعیاش اوخراج سړی هم‌ؤ. ددغو دواړو کسانو ملګرتـوب د خلکو قهر اوکینه نوره هم زیاته کړه اتفاقاً دلارډ دوګلاس پلار هم دوایلد له‌دښمنانو څخه ؤاودده‌په نسبت به‌یی په هرځای کښې‌سپکی سپوری خبری کولی .له‌بلی خـوا څرنګه چه دلارډدوګلاس له خپل پلار سره نه‌وه لګیدلی وایلد یی ولمساوه چه په پـلار یـی‌دعوی وکړی .

محاکمه شروع شـوه . زلمـی لیکوال دخپلو افکارو او نظریاتو قضاوت داسی مرجع‌ته وسپاره‌چه ډیر لږ فکری او ذوقی تجا نس‌یی نه‌ورسره درلود په‌هغه سوال او ځواب کښې چه‌وایلد دمحمکی لـه رئیس اوغړو سره وکړ په خپلو داسی خبرو او دلیلـو نویی زور واچاوه چه هغـه دده لـه‌ذوق او سلیقی سره مخالف ؤ.پـه نتیجه کښې دی درایوپه آتفاق په‌دوه کاله بند اوشاقه کار محکوم شو کله‌چه ددووکالو سخت بند نه خلاص شـو جسم‌یی ډنګر اوکمزوری شوی ؤ ده تردی وروسته په انګلستا ن کښې استوګنه غوره‌نکړه اوفرانسی ته لاړ .اوله فرانسوی‌لوی‌لیکوال اندره ژید سره‌یی علایق ټینـګ کـړل.

وایلد په ۱۹۰۰کال‌کښې دپاریس دیو هوټل په محقره کوټه‌کښې له دنیانه سترګی پټی کړی‌د«سالومه» ډرامه ــ د«ابوالهول »کتاب دده له آثارو څخه‌دی او د«ریدینګ د

بندی‌خانی أثر »دده هغه کتاب‌دی
چه په بندی‌خانه‌کښې یې‌لیکلی‌دی.
خو دده‌نه فنا کیدونکی شاهکار
«ددوریان گری تصویر »دی چه د
انگلستان دادبیاتو له‌شاهکاریو
څخه گڼل کیږی .

**ددوریان گری تصویر :**

یو ښکلی زلمی چه ښکلایی ډیر
لږ ساری لری باز یل‌هالوارد د
نقاشی په کارگاه کښې د نقاشی
مدل کیږی.دغه زلمی دوریان گری
نومیږی چه‌هم ښه ځوانی لری او
هم ډیر بډای سړی دی. هغه د
زرگونو ځوانانو خوښیږی او هر
څوك غواړی چه‌له ده سره‌ملگری
توب ولری .

دنقاشی استاد له‌دغه ځوان‌څخه
داسې ښکلی دنقاشی‌تابلوجوړوی
چه دده او ښایی د نقاشی
دهنر شاهکاری گڼل کیږی .
نقاش یو اخلاقی او شریف‌سړی
دی اوزړه‌یې غواړی چه د نقاشی
مدل یې‌هم شرافت او اخلاق
ولری .

ددغه نقاش په کار گاه کښی یو
خانزاده هانری وتون له دوریان
گری سره اشناکیږی خو د غه
سړی داجتماعی رسومو - ادابو
او اخلاقو په باره کښی دنقاش
له نظریاتوسره مخالف‌دی‌اوعقیده
لری چه اخلاق اصولا کومه معنی
نه‌لری دانسان چه‌زړه غواړی‌هغه
دی کوی او اجتماعی قیود هسی
د ټوکو او مسخرو خبری دی .
دوریان گری چه له دغه اشراف
زاده سره مجلسونه کوی‌لږلږیې
تر تأثیرلاندی راځی او داجتماعی
اداب سننو او اخلاقو په‌باره‌کښی
دده نظریاتوته ورته نظر پیداکوی
بازیل نقاش دومره په خپل
شاهکارمین دی چه نه غواړی
هغه په‌کوم نندارتون کښې‌وښیی
خوا خر دغه تابلو خپل ډیر گران
دوست دوریان گری ته ورکوی
او دی هم دخپلی تابلوپه‌ښایست
کښی دومره محوه‌کیږی چه د ډیر
گران څیز په حیث یی خپل‌کورته
وړی .

په ورځو ورځوله دغې تابلو سره
چه دهنریوشاهکاری‌دی رازاونیاز
کوی اخر دا افسوس کوی چه
آخر به دادسره گل په ځیرښکلی
صورت دیاقوتو په ځیرشونډی
او نرگس غونډی سترگی به د
زړبوډی خزان‌ووهی کشکی دعمر
خزانوونکی په ځای ددی چه دده
ښکلی قیافه په تدریج ورانه کړی
او په ځای ددی چه دروح تأثیرات
او دنفس شیطانی انعکاسات‌زلمی
په ځیره کښې ځان وښیی داټول
نامطلوب عوامل دی‌په‌دغه تصویر
پیښ شی یعنی دده په ځای ئی‌دې
تابلو زړه شی. دده دغه‌ارزوسرته
رسیږی او روحی او صوری‌تغیرات
دده په قیافه کښی نه بلکه په
تصویر کښی ئی‌پیدا کیږی . یوه
ورځ دوریان گری دلندن دښار
په یوه محقر او کثیف‌تیاتر کښی
له یوی ښکلی پیغلی سره مخامخ
شو کوم شي‌چه‌دوریان‌گری‌یی‌ډیر

مفتون کړهغهدهغی نجلی هنرمندی وه ــ دوریان گــری دخپلی مینی راز خپلو دووتنو ملگرو نقــاش بازیل اولارد هانری ته وایی ا و داهم ورته ښکاره کوی چه له نجلی سره یی خبری کړی دی اوله هغی سره یی دواده کولو وعــده هــم کړی ده .

پیغله سیبیل وان نومیږی او داهم په دوریان گری باندی سخته مینه شوی ده دنجلی و رور جیمزوان خپله خورله دغی مینی څخه بیروی او داهم ورتــه وایی کــه چیری اشراف زاده زلمی دده دخــور د غولولو مقصد وکړی نو وبــه ئی وژنی . یوه شپه دوریان گری خپل دواړ ه ملگر ی دپیغــلی دمــینی تر تأثیر لاندی هغه تیاتــر بیائی او هغوی ته دهغی نجلی هنرمندی وربنیی خو پهدغه شپه سیبیل وان خپل رول ښه نه لوبوی ځکه چه ټولــه تو جه ئی لــه خپل مــین دوریان گری سره ده خپلولوبوته ئی هیڅ پام نشته .

دوریان گری چه زیاتره دهــغی دپیغلې په هــنر مین ؤ ددی دننی رو ل په لــیــدهئی زړه سړیږ ی ا و خپله مینه لـــه هغی نجلی څخه چه دعشق او احساس یوه ټوټه ده بیرته اخلی د هــغی شپی په سبانجلی د ډیری نامیدی نه ځان وژنی اوخپل مور او پلا ر دبی وسی اوبی کسی په حــا ل کښی پریږ دی دوریان گــری د ورځپانې او دخپل ملگری هانری وژل کیږي. دغه جنایــت پــه تابلو

دلیك پهوسیله له دغی پیښی څخه خبرېږی اوسخت اندیښمن کیږی دغه جــنایت ئی دښکــلی تصو یــر په قیا فه کښی لـــو مــړ نی بدلون راولــی، دتصویــر شونــډې راټولی شوې اوخیره ئی ورته ژړانده ښکارې دابدوالی چه پــه تصویــر کښی ئی ښکارې په حقیقت کښی دده دروح له بدوالی څخه حکایت کوې کوم بدلون چه دوریان گرې پهخپل تصویر کښی لیدلی دې هــغه ټول تصویر دده ترنظره بد وروڵی ددې دپاره چه دچا سترگی ورباندې و نه لگی هغه بلی کوټی ته وړې او پرده ورباندې اچوې. له لارد هانرې سره دده آشنایی هغه نور هم دفسق او گناه په لوربیایی او تردې وروسته دروح بدوالی او دزړهبوږې آثاریی په تصویر کښی نور تغیــرات هــم راولی. یوه ورځ دده نقاش ملگرې دوریان گرې ته ورځی چه هم خپل شاهکار ووینی اوهم له دې کبله چه فرانسی ته درومی ورسره خداې په امانی وکړې.

نقاش له دوریان گرې نه دخپــل شاهکار دلیدو هیله کوې او داسی نصیحتونه هم ورته کوې چه دې له بدو چارو څخه لاس واخلی خو دوریان گرې دده یوه خبره هم نــه منی او نصیحتونه ئی ترخه ورباندې لگیږې دده غصه نوره هم زیاتوې په نتیجه کښی نقاش ددرویان گرې له خــوا

کښې نور بد آثار پیدا کوي اوس
دمړي پتهول دوریان ګرې ته سخت
کار وبریښیده خلور ورځې ئې په‌دغه
غم او اندیښنو کښې تیرې کړې آخر
خپل یو پخوانی کیمیا پوه ملګرې چه
ده دخپلې بداخلاقی په وجه ملګرې
ورسره پریکړې وه خپل کورته رایی
ولې چه په دواړو سره دنقاش جسم
ویلی او اوبه کړی بیچاره ملګرې یی
دنقاش جسم دشپې له مخی په اسید
کښې حل کوی خلك نـه پوهیږی
چه نقاش وژل شویـدی بلکـه دوی
ګمان کوی چه‌هغه فرانسې ته‌سفر
کـړی دی. دور یـا ن ګـرې خـو
ظاهراً ځان له بلا څخه خلاصوې مګر
دجنایت خاطره یی تل دپولیس پـه
څیر ورپسی روانه‌ده.یوه‌ورځ دې
جیمزوان ته چه زړه ئې له پخوانـه
دوریان ګرې ته ډك ؤ او همده پسی
ګرځیده په مخه ورغی خـوکله چـه
هغه د دوریان ګرې ګوډ ګرې ځوانی
ته وکتل بالکل ۲۱ کلن هلك په نظر
ورغی دبل چاګمان یی وربانديې وکړ
اووئی ونه واژه. خو دغـه خاطـره
دوریان ګرې ډوله شپه پریشانه کړې
ؤ. دې سره د دې چه پنځوس کلن
دی خو دشل کلن زنمی څیره لرې
خوله ډیر زیات روحـی فشار سره
مخامخ دې. دې دوروستنی ځل له‌پاره
تصویر ته ګورې او دتصویـر لـه
قیافی څخه په وحشت کښی لویږې
خپل خنجر وباسی‌او تصویر وربانديې

څیرې کوې.

سبا سهار کله چه‌په‌زحمت سره
ورپرانیزی ګورې چه‌تصویر په‌همغه
بښکلا اوښایست‌ځوړند دې‌اوهیڅ
عیب په کښی نه لیدل کیږې خوزوړ
بوډا له ګونځی څیرې سره تړتصویر
لاندې چه سینه ئې په خنجر څیرې
شوې ده مړ پروت دې دده له ګوتی
څخه چه په ګوته یی ده پیژندل‌کیږې
چه مقتول په خپله دوریان ګرې دې
په دې ترتیب معلومیږې چه زمونږ
په وجود کښی داسی شی شته چه
هغه په‌زړښت محکوم دې داشی یا
زمونږ ځوانی ده اویا زمونږ تصورات
دې.

## تلماك

### دفنلن اثر

تلمات داوولسمی پیړۍ په دوهم
نیمایی کښې دفرانسی له معروفو
شاهکارېو څخه دی چه دیوه پوه
کشیش فنلن په قلم‌لیکل‌شوی دی
فنلن ځومـوده دځور لسم لـویی
دشمهزادګانو اوماشومانوروزونکی
ؤ او ځینی عقیده لری چه ده خپل
دغه کتاب‌دولیعهدیعنی دځور لسم
لویی دنمسی دروزنی‌له‌پاره لیکلی
دی .
فنلن دکرسی دفنلن په ماڼـی
کښې په ۱٦٥١ کال کښې زیږیدلی
دی‌ده دکاهور په ښوونځی کښې
په‌خپلو تحصیلاتو پیل کړ ی دی
او بیایی‌دپاریس‌په‌پلمی ښوونځی
کښې‌دوام ورکړی اوبیا دسن‌سو
لپیس له‌مذهبی‌پوهنځی څخه فارغ

شوی دی. او په ۱٦٧٥ کښې چه ۲٤ کلن ؤ دکشیش درجې ته رسیدلی دی .

ده دمسیح ددین له تبلیغاتو سره ډیره مینه لرله او تل به په دې فکر کښې ؤ چه په مذهبی هیئاتونو کښې دختیځ خواته روان شي مگر له خپله دغه میل ارعشق څخه یی دفرانسی په هیواد کښې استفاده وکړه .

فنلن په ١٦٧٨ کال کښې دنویو کاتولیکانو دمدیر په حیث مقرر شو ددغه مدیریت هدف داسی تبلیغات کول ؤ چه پروتستان زلمیان دکاتو لیک ائین ته وروگرځوی. ده په دغه وخت کښې خپل ځینی آثار خپاره کړل دده آثار ښیبی چه ده دروزنې لارښوونی او دنفسونو دتزکیی د مربوطو مسئلو په باره کښې څومره زحمتونه گاللی دی .

دنجونو دروزنی په باب کتاب یی هم له دغو آثارو څخه دی چه په ١٦٨٧ کال کښې یی لیکلی دی.

کومې کامیابۍ چه فنلن دکاتولیک مذهب په ترویجولو کښې لاس ته وروړی وی دمشهورخطیب بوسوئه چه پدغه وخت کښې ترده ٢٤ کاله مشرؤ توجه یی ور وگرځوله ـ دفنلن دکورنی نجابت یوبل سبب ؤچه له ده څخه یی ددوك دوبور گونی روزونکی جوړ کړ. دا هلك چه د کوچنی دوفن په نامه هم یاد یده له حد او وصف نه زیات شوخ او چالاك انسان ؤخو فنلن دمهربانی او نرمی له لاری هغه تر خپل تاثیر لاندی راووست.

په دغه وخت کښې ددوو روحانی شخصیتو تر منځ دسلیقی او روش داختلاف له امله یو دبل په ضد مبارزه شروع شوه ددی منازعی په نتیجه کښې پاپ په ١٦٩٩ کال کښې فنلن محکوم کړ له بلی خوا دهغو انتقاد آمیز اشار و په سبب چه فنلن په خپل کتاب تلماك کښې د څورلسم لویی سلطنت ته کړی دی ـ هغه یی دکشیشی له محوطی نه له وتلو څخه منع کړ. فنلن په زیات صبر او حوصله انتظار در لود چه خپل انتقام واخلی او دده شاگرد دکوچنی دوفن دی دڅورلسم لویی په تخت کښینی مگر داسی وخت هیڅکله رانغی ځکه چه کو چنی دوفن له دغو پېښو څخه یو کال وروسته مړ شو او فنلن هم په ١٧١٥ کال کښې یعنی دڅورلسم لویی دمړینی نه څو میاشتی دنړۍ له فانی دنیا څخه کډه وکړه. له فنلن څخه دری مهم ادبی اثرونه پاتی دی چه هغه دنجونو روزنه (١٦٨٧) تلماك (١٦٩٠) او اکاډمی ته لیك (١٧١٥) دی اوتلماك یی شاهکار دی .

تلماك د دوك دو بور گونی د ښوونی او روزنی له پاره او دهغه شهزاده دفکری او اخلاقی قواوو د روزنی په وخت کښې لیکل شوی دی. **کتاب د پخوانی** او **حماسی تاریخ** ... تر خپل تاثیر یونان دادبیاتو

بنودلو جنبه لري، ددغه کتاب په
خپرولو سره فنلن په (۱٦۹۹) کال
کښې دشــورلسم لو یی له نظره
ولوید اودی په همدغه وخت کښی
دپاپ لهخــوا هــم محکــوم شویؤ
پهدغه کتاب کښی ۱۸ فصلونهراغلی
دی دکتاب موضوع اود لیکلوطرزیې
«رینهرید» سرې تهور په زړه کوی.

دداستان قهر مان چه د طو فان
په اثر د کا لیپسو جـزیری تـه
رسیږی او له ده سره د کالیپسو
مینه او عشق پیدا کیږی اوداملکه
ورته خپل سر گذشت بیا نو ی
(لهلومړی فصل څخه تر ٦ فصل
پوری) او بیا پـه سالانت کښی
(ایدومنهته ور رسیږی).

هو مر مونږ ته دخپل کتا ب
اود یسه په سر کښی راوښودل
چه تلماك دخپل پـلار پـه لټون
پسې تللیؤ خو ژر خپل هیـواد
ایتاك ته بیر ته راغی خـو فنلن
دغه سفر ته ادامـه ور کـوی او
داسې یې گڼي چه زلمي قهر مان
ټول ځایونـه پخپل پـلار پسی
د عقـل درب النـوع «مینرو» پـه
لار ښو ونه ولټول خـو آخـر یو
طوفان دی د کا لیپسو ټاپو تـه
اچوی. کالیپسو د عشق او جمال
یوه الهه ده چه په هغې جز یری
کښې ژوند کوی اود تلماك لـه
ور تگ څخه د مخه یې دده لهپلار
او لیس سره د عشق قماروهلیؤ
اوس چه دهـغه بیلـتو ن غمجنه
کړیده زړه یې په تلماك و ر څی
او په دی تر تیب د گلاب بـو ی
له گل څخه غواړي. کالیپسو له
تلماك څخه هیله کوی چـه خپل
سر گذشت ور ته ووایی (دتلماك
قصه دکتاب په لو مړنیو پنځو
فصلو نو کښې بیا نیږی) کله چه
کالیپسو د تلماك قصه وواری نو
لهده سره مینی شدت احساسوی
خو تلماك چندان التفات نه ور ته
کوی او ددی په یوه خد متگاوه
ښا پیری چه (اوشاری) نو میږی
مین کیږی.

«ما نتو ر» یا «مینر و» د عقل
رب‌النوع لهدی کبله چه تلماك ته
له دغی نا مطلوبی مینی‌څخه‌نجات
ورکړی سیند ته یې اچوی اودی
په خـپله ور پسی روانیږی یـوه
فنیقی بیړی چه ددوی تر څنگ
تیریږی دوی ته لاس ور کوی بیا
دواړه د بیړی لـه څښتن څـخه
هیله کوی چه دوی دایتاك هیواد
ته ور رسوی بیړی چلو و نـکی
چه ارباب‌الانواعو تیر ایستلی‌دی
پـه ځای ددی دو ی ا یتا ك تـه
بوزی سا لانت تـه یې رسوی .
سالانت د یو نـوی جـوړ شوی
هیواد پایتخت دی اود غه هیواد
ایدو منه جوړ کړی دی کله چه
تلماك او مینرو سالانت‌ته‌رسیږی
داسې یوه موقع ده چه ایدو منه
له خپلو گاونډیو سره په جگړو
لگیا دی او په هغه هیواد کښی
دنفاق او رو نه لگیدلی دی.

مینر و عقل او هو ښیاری ته لار ښنو و نه کوی چه په نتیجه کښنی په هغه هیواد کښنی د پاچا اوده د گاونډیانو تر منځ سو له راځی او هیواد ته هو سایی مخه کوی په دغـه و خت کښنی مانتو اویا مینرو د هغه هیواد له پاره ځا دلانه قوانین جـوړوی «ددغـه کتاب لسم فصل ډیر مهم فصل دی فنلن پـه دغه فصل کـښنې خپلې ټولې اصلاحـی نقشی ا و فکرونه ځای کړی دی او په همدغه فصل کښنی د تجارت، د هیو ا د داداری دتجملاتو او بـی فا یدی مشاغلو د منع کو لو د کر هنی داصلاح او ساده بدوی ژوند ته دخلکو د بیو لـو پـه باره کښنی دمقرراتو دوضع کو لو پـه باب بحث کوی» .

له بلی خوا تلماك هغه جگړه چه دایـدو منـه او دده د غلیما نـو تر منځ شو یـد ه د ایـد و منه په گته پاې ته رسوي اوغلیمانوته ماتيورکوی خوددي کارچهایدومنه ددوي هیواد تجزیه کـوي او تر خپل تصرف لاندېئی راولی مخه نیسي تردي وروسته تلماك دخپل پلار په لټه پسی دروميي اوهغه په یو مخصوص ځاي کښنی چه دعا دلو پاچاهانو له پاره دي پیدا کوي او لیبس تراوسه ژوندي دي او د سلطنت کولو لهپاره خپل زويتلماك ته ښه نصیحتونه کوي تردي‌وروسته تلماك بیر ته سالانت ځی او هغه تحولات ستایی چه مانتور هغه په هیواد کښنی راوستی دي . تلماك او مانتور دواړه له ایدومنه نـه رخصت اخلی ایدو منه ـ خپله لور تلماك ته ورکوي مانتور چه‌په دي‌ځاي کښنی ئې وظیفه پاي تـه رسیدلی ده ځان په واقعی تـوگه «منیرودعقل اوتدبیر بین‌رب‌النوع» ته ښیي او هغه ته ځینی نورپندو نه هم ورکوي کله چه تلماك خپل هیواد ته‌رسیږي‌ورك شوي‌پلاریی هملته مومی .

دتلماك کتاب دځوار لسم لو یی د مطلقه استبدادي سلطنت پـه نسبت دهغه دروشنفکرانو دعکس العمل پیل گڼل کیږي اوفنلن په واقعی توگه دهغه پاچاله کړو وړو څخه متنفر دي .

فنلن چه یو مسیحی مومن دي‌ټولی هغه جـگړي او دوینـو توئیدل خورلسم لویی ته نه ښی چه‌دده په وخت کښنی پیښنی شوي دي له دي کبله چه دي پخپله خان‌زاده دي له خانانو سره ـ دپاچا سپك وضعیت نه خوښنه وي اوځرنگه چه فیلسوف دي دملت بیچارگی او اسارت نشی لیدلی . ددي ټول خبرو‌سره سره له‌دي‌کبله چه دي دولیعهد مربی دي په ښکاره ډول انتقاد نشی کـولی اوخپل ټـول انتقادونه دتلماك کتاب په لفافه کښنی را نغاړي . ده‌خپل شاگرد

ته ښودلی ؤ چه دخپلو پلرونو دپاچاهی کولو سیاست سره کرکه ولری اودی دي په فرانسه کښې داسې حکومت جوړ کړي چه دفنلن خوښ وي .

دحکومت او سلطنت هغه ـ طرز چه فنلن خوښ کړي دي دنجیبانو په مرسته جوړ شوي اوهغه داسې پاچا هی حکومت دي چــه دملت دنیکمرغی اوهــوسایی لــه پاره کوښښ کوي اودکسب گــرواو بزگرو له طبقا تو څخه جوړیږي دا حکومت کوښښ کوي چه نور عمومي اموال (بیت‌المال) تلف نشي او مالیه دي په عادلانه توگه واخستله شي اوعمومي ثروت دي هم په‌شرافتمندانه توگه‌وویشل شي اوبیا دي په‌هیوادکښې‌دجگړو او تجملاتو اولویو سرمایواثرات پاتې نشي .

# توراة

## آسماني کتاب

توراة دآسماني کتاب دبشر له لومړ نیو پیدا شویو کتابو څخه دي . داکتاب ډیر داسې خواږه داستانونه لوړ اشعار اوبکرمضامین لري . چه تر اوسه پوري دنړي نقاشان ـ مجسمه جوړ وونــکي هنرمنــدان او مو سیقي پــوهان شاعران او رومان لیکونکي‌ورڅخه ورڅخه الهام اخلي .

پــه کــتا ب کښې د سانسول او دلیله ـیـوسف او زلیخــا ـ داؤد او سلــیــمــان او د بــنی اسرائیلو دنورومذهبي پیشوایانو قصې ډیري خوږي اوجالبي دي.

دتورات دټولو جذابومطالبوخلاصه کول ددغه مضمون دحوصلې‌څخه وتلی کــا ر دی او مــونږ دلته د توراة له ښکــلاووسره د گــرانو لوستونکو دآشناکولوله‌امله یوازی دسلیمان‌دغزلونو تحلیل‌چه‌له‌میلاد څخه دمخه دبشردډیرووښکلواشعارو نمونه ده او دبنی‌اسرائیلو د قوم وړاندې‌کوو .

### د سلیمان غزلې:

داداسې ښکلې نغزاوله خوندونو ډك اشعارو دي چــه د یهــودي افسانو له مخي یې نسبت دبنی اسرائیلو پاچا سلیمان ته شوي دي . دغه پاچا دیوي شپني‌نجلۍ په مینه کښې عشقي سندرې‌ویلي دي چه هغه به پــه پنځو صحنو ویشلي کیږي اوپه‌لاندې‌ډول دي:

یوه ښځه دمیړه په لټون کښې‌وه. معشوقي ته‌په خوب کښې‌دعاشق دښکلا اومینې الهام شوي دي .

دناوي کولــو مراسم اویودبــل ستایل . دمعشوقي عشق په‌محک اندازه کیږي ددغــه وصال میوه سوله او دعشق کامیابی ده .

دا په زړه پوري اشعار له هرڅه نه دمخه دانساني عشق په ویاړ جوړه شوي یوه نغمه ده .

یوه ښځه اویوسړي داسې‌خبري کوي لکه چه دوي په مځکنۍ‌جنت کښې یو له‌بل سره اشنا شوي وي اود «ښه‌اوبدتمیزکولو» دمیوي ونی ته‌ئی‌لاس رسیدلی له‌بلې‌خوا له‌دي کبله چه‌دا اشعار دآسماني

کتاب یوجـزء دی ځـینی کسان
هـغو ته یـو ا ز ی د ښکـلـو
اشعار وپه نظرنه گوري اودتصوف
او عرفان داسی واقعی سرودونه
یی بولی چه پـه رنگینو الفاظو
لیکل شوي او شرقی پهزړه پوري
کنایی او استعاري لري اودخالق
اومخلوق ترمنځ ملکوتـی عشق
یعنی له بشري روح سره دخداي
اتحاد مجسم کوی . دادي مونږ
دسلیمان له غزلیاتو څخه څوغزلی
لیکـلو :ـ اي دسلیمان د غـزلو
غزالي ـ ستا مینه له شرابوڅخه
ښه ده ـ ستا نوم هغه عطروته
ورته دي ـ چهپه مځکه نولل‌شوي
دي ـ ځکه پیغلی له تاسره مینه
لري ـ اي‌داورشلیم پیغلی زه‌توره
رنگی یم‌خوښکلی هم‌یم ـ ماته د
«قیدار» دخیمواو دسلیمان دپردو
په څیرمه گوره که زمابڼه توره‌ده
هغه لمر سوځولی ده ـ زما دمور
زامن په ماقهرشوي ؤ اوزه‌یی دتا
کونو باغوان کړي‌وم خوما دخپل
تاکستان پالنه نه ده کړي .
ته دومره راته وایه‌چه‌خپلې رمی
چیرته پیایی او چیرته‌ئی پټهوي.
زه‌د «شارون» دغـره نرگس او
ددروسوسن یم ـ زما محبوبه په
نور ونجو نو کښی داسی مقام
لري لکه‌گلاب‌یی‌چه په اغزیوکښی
لري زما محبوبـه پهنورو کښی
داسی ښکاري لکه دمنې ونه چه‌په
ځنگله کښي ولاړه‌وي. زه‌دهغه‌دي
تر سیوري لانـدي کښینا ستم او
میوه‌ئي راتـه ډیره خوږه وه تـه
ماده ممیزوپه مرکباتو قوي کړه
اوپه تازه مڼومی تازه کړه ځکه‌چه
دي او په ښی لاس می‌خپلی‌غیږي
ته ورنژدي کوي .
اي‌داور شلیم نجونو ! زه‌تاسوته
د صحرا په هو سیو اوغرڅه‌گانو
قسم در کوم چه زما محبوبه تر
هغه‌وخته پوری چه‌ددي خوښه نه
وي له خوبه‌ویښه‌نه کړيء .
اي زما ښکلی محبوبی ! پاځیږه
او راشه ! !
چه ژمی تیر شوي دی بارانـونه
نورنه اوري گـلانوله خاورونـه
سرونه راپورته کړي‌دي‌اودسندرو
وخت راغلی دي ـ زمونږ په‌ولایت
کښی دادي دپاختی آواز اوریدل
کیږي .
انځیرومیوه راوړي اوویښتانوگلان
کړي دي او خوشبویی ئي هـر
هر چیرته نوللی کیږي .
اي زما محبوبی اواي زما ښکلی
محبوبی ! پاځیږه اوراشه !
اوته زما ښلکی کوتري دکمرونوپه
غارو کښی ماته خپله څیره وښیه!
آوازدي راته واوروه !
په شپه کښی می داچه له‌ځان‌نه
را باندي گرانه ده خپلی بستري
ته را وبلله خوپـه ځنگ کښی
می‌ونه موندله ـ زړه می‌راته‌وویل
چه دښارپه کو څوکښی وریسی
وگرځم خوهلته می هم پیدانگړه.
چا چه زه په ښارکښی وموندلم
دوي ته‌می وویل تاسو زما ښکلی
محبوبه نه ده لیدلی . له دوي‌څخه
چه‌څوقدمه وړاندي‌لاړم هغه څوك

زه دمیني رنځوریم .
دهغې کينې لاس زما دسربالښت
چه‌له ځان نه راباندې گـرانه ده
پیدا مې‌کړه‌ترهغه وخته‌ورسره‌وم
تر څوچه داد خپلې مور کورتـه
ورسیده . ای داورشلیم نجو نو
تاسوته د صحراگانو په هو سیو
او غر څه وو سوگند درکوم زما
محبوبه ترڅو ئې‌چه‌په‌خپله نه‌وې
غوښتي مه ئې ویښوې او مه ئې
پاروې !
ته‌ډیره ښکلې زما محبوبې!دادې
وینم چه ته ډیره ښکلې یې ! لـه
خادرې څخه دې سترگې دکوترو
دسترگو په څیرښکارې ویښتان
دې دپسونو هغو رموته ورته دې
چه دغره‌په‌ډډه‌پنډې شوې‌اوسپین
غاښونه ددسپینو میږو هغې رمې
ته ورته دې چه نوې‌مینځلې‌شوې
وې اويو ځاې‌لنگې شوې‌وې اويوه
هم لنگې کیدو څخه نه وې پا تې
شوې . شونډې دې سرې‌دې او
خوله دې ښکلې ده . او شقیقې‌دې
په خادرې کښې دانار ددانې په
څیرښکارې غاړه دې دداؤ ددهغه
برج په‌څیرده چه دوسلو دخوندې
کولو دپاره جوړشوې دې اوپه‌هغه
کښې دزړ ورو کسانو سپرونـه
ځوړ ندې دواړه‌تیان دې‌دهوسۍ
دغبر گونو بچیانوپه څیر ترمنځ
رهي دي . زما ښکلې محبوبې ستا
ټول بدن ښکلی دې پـه تاکښې
عیب نشته اې زمـا خورې اواې
زما ناوې !زمازړه دې په‌یوه غاړ
کې اوسترگو دې بایلود . اې زما
خورې اوزما ناوې‌مینه دې‌څومره
خوږه ده مینه دې لـه شرابونـه
هم ښه ده .
اې زما ناوې نه شونډ وڅخه‌دې
شات اورې ستا تر ژبه لاندې‌شات
اوشیدې دې اوله جامو څخه دې
دشونډ وبوې راځي .
اې دشمال باده پاڅیږه ـ اواې
دجنوب باده‌راشه. زماپه باغ‌کښې
ولگه اوعطرونه یې خپاره کړه چه
زما محبوبه باغ ته راشي اودهغه
خوږې اوښکلې میوې وخورې .
اې زما خورې اواې زما ناوې‌ـ‌خپل
باغ ته راغلم شات مې وڅکل او
شراب مې له شودو سره وچښل
زما دوستانو وخورۍ اوز.املگرو
راشي وچښئ !
زه‌بیده‌یم خوزړه مې ویښ دې‌زما
د محبوبې اوازدې چه زما دروازه
ټکوي اې زما محبوبې اواې زما
کوترې ماته ورپرانیزه‌اې زماخورې
ځکه سرمې له‌شبنم اوځانمې‌دشپې
له تر شحاتو څخه ډک دې ـ
داځوك ده چه‌دسبا په‌څیرروښانه
د سپوږمۍ په څیر ښکلې اودلمر
په‌څیر پا که او دبیرغ لرونکې
لښکرپه څیر مهیبه ده .
دچار مغز دونوباغ ته‌لاړم چه
دوادې سمسورتیاووینم اووگورم
چه ویښتانو غوټې کړې او انارو
گلان نیـولی دې اوکه به .ـ
اې دشریف سړې ! ستاپښې
په پڼو کښې څو مره ښکلې دې.

ستا د ور نــو حلقــه هــغو
هغوگانهوته ورته ده چه یو ښه
صانع جوړې کړې وې ستادنامه
غوټی هغی گردې کاسی ته ورته
ده چه گه شراب پکښې کمی نه لرې
ستاقد دغنمو هغی گیډې ته ورته
ده چه دسوسن بوټو احاطه کړې
وې ستادواړه تیونه دهوسی دغبر
گونو بچیانوپه څیردې غاړه دې
دعاج برج ته ورته ده او سترگی
دې «بیت ربیم» ته نژدې دې د
«حشبون» دځراغو په شان دې
پاچاستا دار غوانی زلفو په ځنځیر
کښی اسیردې .

اې محبوبــی څومــره ښکلی او
خوږه یی ــ ډیر خوږ والی په سبب
ستاقد دخرما دونی په څیر ختلی
اوتیان دې دانگور ووږې گرځیدلی
دې، زړه می وغوښتل چه د خرما
په وینه وخیژم اووږې ئی راونیسم
ستا تیونه دانگورو دوږیوپه څیراو
ستا نفس دمڼو دبوې په څیر دې
ستا خوله هغو ډیــر ښو شرا
بو ته ورته ده چــه په وررو ورو را
توئیږې او دبیده شویو کسانو
خولی په خبرو را ولی .

په ماگرانی راځه چــه صحرا ته
لاړ شو او پــه کلیو کښی استو
گنه غوره کړو سهار وختی دتا
کونو باغ لاړ شواو وگوروچه ایا
انگور وگل راوړې دې اوگلونه یی
غوړیدلی دې اوکنه او ایا انارو گل
کړې دې اوکه نه . زه بــه هلته

خپله مینه تاته درکړم زمونږ په
باغونو کښی هر ډول تازه اووچی
نفیسې میوې شته چه ماهغه ستاد
پاره ټولی کړې دې .

کشکی ته زما دهغه وروږ په څیرواې
زما دمور تیو نه روې اوچه ته می
دباندې لیدلی نومچکی می درڅخه
اخستلاې شوې خوخلکونه رسوا
کولی . اوته می دمور کورته له ځان
سره را وستلاې شواې چه تعلیم
دې را کولی او په تامــی ممزوج
شراب او دانارو به څښلاې شوې.

ماته په خپل زړه کښی ځاې راکړه
او دغمی په څیرمی په خپلو لیچو
وتړه . ځکه چه مینه دمــرگ په
شان زوره وره ده اوحسد دگور په
څیر بی رحم دې . عشق داور دلمبو

په څیر دې خوسیند به دغه اور
مړنکړې او سیلاوونه به په بی هستی
له منځه یونسی . زه یوه کوچنۍ

خورلرم چه تیونه نه لرې په کومه
ورځ یی که څوك وغواړې نوزه به
څه ورسره وکړاې شم . که دیوال

وې نودسپینو زرو برج به می ورته
جوړ کړې واې اوکه دروازه وې
نود آزادې سروې پــه دړوبه می

پوښلی واې ــ زه دیوال یم اوتیونه
می دسپینو زرو دبرج په څیردې.
اې زما محبوبی ته که په باغونو

کنبنی ئې او ملګرې ستا اواز اورې ماته یې هم واوروه . ګرانی محبوبی لاړه شه . دغر څه په خیر یاد هوسی دبچی پشان په غرو نو باغ ـ برسپینه تیره....او تیرې .... مشك ونوله ! ـ . . . .

## دپنګوئن یاتوړا پو

### دانا تول فرانس اثر .

ځینی کسان عقیده لري چه «طائیس او یاد سیلو ستر بوناز جنایت» دمتفکر لوې لیکوال اناتول فرانس شاهکار دې لیکن زه «دپنګوئن یانو ټاپو» کتاب ځکه شاهکار بولم چه داکتاب یوه سیاسی اواجتماعی سمفونی ښیی او دفرانسی تاریخ یی پکښی دیوقوې او خوند ناك انتقاد په ترڅ کښی لیکلی دې .

انا تول فرانسوا تیبو په ۱۸٤٤ کال کښی په پاریس کښی زیږیدلی دې او په ۱۹۲٤ کال کښې په سن سیر سورلو کښې مړشوې دې. دې دیو غریب کتاب پلورنکی زوې دې اودځوانی له ابتدأ څخه ئی د«پارناس» لهډلی سره روابط لرل ـ ده په ۱۸۷۳ کال کښی خپل منظوم اثر «طلائی اشعار» خپور کړ ٥٢ کلن وُ چه دفرانسی داکاډمی په غړیتوب ومنل شو .

په ۱۹۲۱ کال کښی دنوبل دجایزې په اخستلو بریالی شو دغه مقتدر لیکلوال او عالی مقام فیلسوف زیات اثار لکه «طایس» دسیلو ستروستر بونازجنایت ـ د فرښتو ګناه دژاروم عقیدې داپیکور لري خو د پنګوئن یا نو جـزیره کتاب د لیکوال دلوړ فکر ـ تنویره په زړه پورې بدیع.اوسهیل ممتنع سبك پیژندوې دې دغه لوې لیکوال ته د فرانسی دنثر د سلطان لقب ورکړې شوې دې .

دپنګوئن یانوټاپو :

لکه چه و ویل شول دغه کتاب دفرانسی دملت یو له کنایو او طنز څخه ډك تاریخ دې چه ددغه ملت له پیدایښت څخه «البته افسانوی او ساطیرې قصو ته په توجه سره» شروع کیږي . لیکوال دخپل کتاب په مقدمه کښی لیکی . غوښتل چه ددغه ملت دزمامدارانو تاریخ ولیکم خودپخوانیو مؤرخینو پهسبك او روش نـه زړه مـی غوښتل چه ددغه ملت دزمامدارانو او دهغو عقایدو په باره کښی چه خلکولرل هغه حقایق ولیکم چه تر اوسه پوری لـه نظره لویدلی دی له همدغه کبله دتاریخ لیکلودفن هغو استادانو ته ورغلم چـه په پوهنتون کښیداستادې پهکورسی ناست وو .

خودوې ماته وویل که غواړې چه مفاهیم په ټولنه کښی پـټ وې

ژوند او ازادي ته دي خطرپیښ
نشي دهغو مطالبو لهلیکلوڅخه
ډه ډه و کړه چه امکان لري چه
ځینو احساساتو ته توهین وګڼل
شي . دوې راته وویل چه بایدته
نوې څیړنې ونه کړې اوهغهمطالب
ولیکلې چه نورو مؤرخینو لیکلی
دي.اوماهم ددوې پدرانه نصیحتونه
په کار واچول اودغه تاریخ مې
و لیکلو : . . .

بیا وایي : ماته دافرق نه لريچه
زهد پنګوئن دملت یادکوم بلملت
تاریخ ولیکم ځکه چه ټول ملتونه
یوبل ته ورته دي اوصحنې ئیپه
ډیر لږ اختلاف په هرځاې کښې
تکراریږي . ځکه چه «دهر ملت
ژوند دهغه افرادو «جنایتونو،فلا
کتونو او لیونتو بونو سلسله ده
اودپنګوئن دقام ژوند هم لهدغې
کلي قاعدې څخه خارج نه دي».
دلوړې جلدلوړې فصل دهبادیو
په باره کښې دي او په هغه
کښې یو لړ اساطیر به کوسیک
ډول لیکلي شوی دی له همدغه
ځایه د انسان ژوند د و حشت
او لیږ تیا له ابتدأ څخه شروع
کیږي مبادې پاې ته رسیږي او
دپخوانیو زمانودورهشروع کیږي
دپیدایښت په باره کښې بحث
ددغه کتاب یوه ښکلی برخه دهپه
بل فصل کښې ئی دمځکو دتجدید
او دمالکیتو دبنستو نو په باره
کښې بحث راغلی دي . وروسته

په لوموړنیو روابطواود دولتونو
دتشکیل په باب خبرې کیږي
اثر دی چه ډیر لوی فیلسوف
رسیږی او د فرانسې د لویانقلاب
پیښو ته اشاره کوی .
د یهودی افسر د دریفوس او
دبورژوازی طبقاتو تر منځداختلاف
داستان بیانیږی دریفورس یهودی
افسر په دی تومتی شوی چه ده
د فرانسې نظامې اسرار په
انګلستان پلورلی او د هغه هیواد
له پاره یې جاسوسی کړی ده .
اناتول فرانس دغه قضیهدبیروت
په نامه چه همغه دریفوسدیمطرح
کوی او د فرانسې نامتو لیکوال
امیل زولا دکلمبان په مستعار نوم

دپیروت ملګری کوی . دکلمبان
مبارزه د پیروت د غلیمانو درسوا
کولو په باب دومره قوی او جالبه
ده چه لوستونکی ورته آفرینوایی
کلمبان دپیروت دبیګناهی دثابتولو
له پاره له هیڅ ډول کوښښ څخه
ځان نه ژغوری دی وهل کیږی
بدی او ناوړه خبری آوری خوپروا
وربانډی نه کوی او خپله خبره
تر یوه ځایه رسوی تر څو چه
پیروت ته نجات ورکوی .
دیدکتاب په آخرکښېدفرانسوی
ملتغفلت اوعیاشیوته اشاریکوی
لکه دغه قصه یی چه : دملیشوری
یو زلمی نماینده «هیپولیت سره»
چه بیا دمخابراتو وزیر کیږی له
یوی ښکلی نجلی مادام کلارانس

سره واده کوی «آه ولین» خپل میړه ته فریب و رکوی او له صدر اعظم «ویزیر» سره ناروا روابط پیدا کوی ټول سیاسی او اداری کارونه ددغو عشق بازیو تر تاثیر لاندی را ځی دولت په خپلو دغو ناوړو کارو په مقابل کښې داسی د سویی په خوب بیده کیږی حتی چه دلومړنی بین المللی جگړی په وخت کښې دغفلت په حال کښې ددښمن له خوا اشغالیږی.

## افلاطون

### او مهم اثر یی

د جمهوریت کتاب د لرغونی نړی یو ډیر مهم فلسفی او اجتماعی اثر دی چه ډیر لوی فیلسوف افلاطون لیکلی دی . افلاطون ډیر کتابونه او رسالی لری چه ټول یی دده د استاد سقراط او خوتنو شاگردانو تر منځ یی د مکالمی او مناظری په توگه لیکلی شوی دی خو افلاطون یی داسی څرگندوی چه گواکی دا خبری د سقراط دی او بنایی دده لیکنی د هغو درسونو مجموعه وی چه له خپل استاد سقراط څخه یی اخستی دی خو په دی کښې شك نشته چه سقراط هیڅکله قلم په کاغذ نه دی ایښی او نه ځان څخه یی کوم کتاب نه دی پری ایښی او کوم شی چه ده ته منسوب دی او دده قول گڼل کیږی هغه یی شاگر دانو په تیره افلاطون لیکلی دی. افلاطون ډیری رسالی لیکلی دی چه هره یوه دفلسفی او ټولنی د کومی جدی موضوع په باره کښې ده . خو دده ډیر مشهور اثر (جمهوریت) دی. هغه مسألی چه په دغه کتاب کښې طرح شوی دی نه هغو مهمو مسئلو څخه دی چه بشر د پیدایښت څخه ورته توجه لرله او تر څو چه بشر وی له هغو سره به یی توجه پاتی وی .

**افلاطون :** په نړی کښې به داسی خلك ډیر لږ وی چه دافلاطون نوم به یی نوی اوریدلی او دده دعلمی مقام او لوړ فکر څخه به خبر نه وی . اصلی نوم یی ارسیتو کلس دی چه وروسته بیا په افلاطون مشهور شوی دی دیوه قول له مخی په ۴۲۸ ق ـ م کښې زیږیدلی دی پلار او مور یی دواړه د یونان له نامتو کورنیو څخه وو افلاطون لا کوچنی ؤ چه پلار یی مړ شو او مور یی بل میړه وکړ. د افلاطون تحصیلات له اوه کلنی څخه د هغه وخت دښوونی اوروزنی داصولو سره سم شروع شول . دریاضیاتو ـ شعر او موسیقی لوستل لیکل ورزش اوبدنی روزنه دهغه وخت دتحصیلاتو په کړنلاره کښې شامل وو .

افلاطون له کوچنی توب څخه له شعر سره زیاته علاقه لرله او حتی په ځوانی کښې یی ځینی اشعار هم ویلی وو . خو کله چه د فلسفی په لاره روان شو نو

شعر يې تر نظره سپك ورغى او
خپل شعرونه يې وسو ځول .
په اتلس کلنۍ کښې د سوفسطائيانو
بحثو نو او مناظرو دده توجــه
ور جلب کړه . دسوفسطــائيانو

کار سيارتد ريسؤ دوى به له يوه
ښارنه بل ښارته تلل او دهومر
د اشعارو کلاسيکو ادبياتو نه پرته
دنويو موضوعاتو پــه باره کښې
به يې خلکوته درسونه ښودل او
دخطابې په فن کښې به يې شاګردان
روزل ځرنګه چه په هغه وخــت
کښې هرچا غوښتل چه په سياست
کښې وارد شي .

دى به مجبورؤ چه په وينا او
نطق کښې مهارت پيدا کړي نــو
دغه تمايل د سوفسطائيانو دپاره
ډير طرفداران پيدا کړل خو افلاطون
داسې ځوك نهؤ هغه ددغې لفاظۍ
ډلې ددرسې تر تاثير لاندې راشې ځکه چه

**ده حقيقت غوښت او دسوفسطائيانو**

په وينا وکښې يې رښتيا او حقيقت
نه موندہ نو ځکه سخت ورځخــه
منزجرؤ .

د يونان عظمت چه له ايرانيانو
سره ديونانيانو دجګړې نه وروسته
حاصل شوى ؤ او ورځخه ډير متمدن
هيواد جوړ شوى ؤ د داخلې جګړو
په اثر د انحطاط په لورى روان
شو ديونان په هره برخه کښــې
جګړې منځ ته راغلې خو دغه لوى
سړى (چه د تاريخ پاڼې بل ځوك
دده پشان نه شى معرفې کولــى )
دجګړو په وخت کښې د مطالعې
نه لاس وانخيست او د فلسفې او
اجتماعې مسائلو په باره کښې يې
خپل بحث ته ادامه ورکړه .

افلاطون اته کاله د سقراط لــه
مجالست او خبر و اترو نه مستفيد
شو او دده د مرګ نه وروسته
يې دهغه لاره ونيوله ده د مکارا
ښارته مهاجرت وکړ او تصميم يې
ونيو هغه مکالمې چه دده او د
سقراط او د نورو تر منځ شوې دې
د محاوروى رسالو په سلسله کښې
راولى او د هغو په ترڅ کښــې
د سقراط د فلسفې مبانې بــيان
کړي او د هغه وخت د حــکومت
ستره ګناه چه سقراط يې په مرګ
محکوم کړ خلکوته ځرګنده کړي
افلاطون د ډيرو سرګردانيو نــه
و روستــه پــه ۳۷۸ ق ، م کښې
بيرته اتن ته راغى او په دغه وخت
کښې يې سياسې فکر بيخې له ځان
نه ايسته کړ په ۳۷٦ ق،م کښې يې
د هنر درب النوع او دنه ګونــو
هنرو خداى ګوتې اپولون تر حمايې
لاندې د حکمت يوه مدرسه تأسيس
کړه او ددغه کار دپاره يې دښار
دروازې ته ورځرمه يو باغ انتخاب
کړ چه د «اکاډمى» نوم يې ورباندې
کيښود . افلاطون د اکــا ډمــى
دجوړيدو نه شل کاله وروستــه
بيا مسافرتونه وکړل يو ځوموده
بندې هم شو خو بيا د يومحترم
شخصيت په واسطه له بند ځخه

خوشي شو دی په ۳۴۸ او یا ۳۴۷ ق ، م کښې مړ شوی دی .

**جمهوریت** : لکه چه وموویل د جمهوریت کتاب د لر غوني نړۍ یو شاهکار او د افلاطون مهم اثر دی که څه هم د علم الاجتماع پوهان په دغه کښې د شاملو موضوعاتو په باب انتقاد و نه لری اودافلاطون «مدینهٔ فاضله» چه د اجتماع اصول د مال ــ ښځی او زامنو په اشتراکیت بنا کوی تخیلی او غیر عملی لولی سره ددی هم دغه کتاب د میلاد نه دپنځویشتو پیړیو پخوانیو وختو د انسان د لوړ فکر نمونه دی او په خپل مقام کښې ساری نه لری . د جمهوریت کتاب لس بابونه اویا لس کتابونه لری چه هغه دادی :

**لومړی کتاب** : دعدل په باره کښې معمولی تعریفات ــ عدالت څه شی دی او له مفهوم څخه یی کوم کوم شیان استنباط کیږی . آیا عدالت درستی ــ راستی او عصمت دی. اوکه ددین د مراسمو اداکول دی . نو په دی صورت کښې دحاکمی طبقی او قوی کسانو په نسبت دوظیفو اجرا کول دی

او که بل څه دی . آیا د عدالت بنسټ نیکو کاری نه ده . بیا له خپل بحث څخه نتیجه اخلی چه

ښکلا دعدالت روح دی او نهایی هدف یی د نیکمرغی لاس ته راوستل دی .

**دوهم کتاب** : داجتماع په هیئات او د افرادو په اخلاقو کښې دعدالت دماهیت په باره کښې خبری کوی په دی کتاب کښې دا بحث شوی دی چه آیا عدل په خپله مطلوب دی یا د هغو نتایجو له مخی چه لاس ته ورڅخه راځی مطلوبیت لری . آیا عدل د ټولنی دغړیو تر منځ تړون دی او که ذاتی فضیلت دی .

دمحض عدل او محض ظلم دښاری ژوند بنسټ دښار ساده اوتجملی اړتیاوی ــ لښکر ته اړه د جنگی کسانو اوزمامدارانو طبقه دحاکمی طبقی د روزنی اصول په ځینو ادبی آثارو انتقاد کول ..

**دریم کتاب** : ددغه کتاب شروع د بل کتاب بقیه ده . دحکایاتو او اشعارو په سبك او دموسیقی اشعارو په آهنگ او وزن انتقاد دشعر او موسیقی تر بیوی اغیزه بدنی روزنه د روحی او جسمی روزنی هم آهنگی ــ د زمامدارانو ټاکنه او په دووو طبقو ساتونکی او مرستیال دهغوی و یشه د ټولنی دپیدایښت اوله دریگونو فلزو څخه د افرادو د جوړیدلو افسانه .

**څلورم کتاب** : ددغه کتاب شروع د دریم کتاب بقیه ده د زمامدارانو

د طبقې دبشري ټولنې او انساني نفس څلور اصلي صفتونه ـ له دغو صفاتو څخه دعدل دتشخیصولو طریقه د انسان د نفس دری ګوني اجزاء او دعدل ـ ظلم ـ او عیب له تعریف سره د انساني صفاتو په لحاظ دهغو ارتباط .

**پنځم کتاب** : په ټولنه کښې د ښځې مقام او دجګړې درسومو په باره کښې بحث د نر او ښځې تر منځ مساوات ـ د زمامدارانو د طبقې تر منځ د ښځو او زامنو اشتراك ـ د میړه او ښځې او د زیږیدنې د نژاد د اصلاح او د ماشومانو د ساتنې موضوعات . د جګړې دفن تعلیم ـ دجګړې قواعد او رسوم له غلیم سره د معاملې دود .

د فلسفي حکومت او د هغه لزوم آیا د مدینه فاضله تاسیسول عملي دي او که نه . د فیلسوفانو د حکومت لزوم . د فیلسوف تعریف دوحدت عالم او د کثرت عالم علم او جهل او ګمان .

**شپږم کتاب** : د زمامدارۍ لپاره دفیلسوفانو وړتوب په ټولنه کښې دفیلسوفانو دفاسدکېدولو علت دفیلسوفانو دزمامدارۍ امکان ـ دمطلقې ښیګنې ماهیت او مقام یې د علم له نظره ـ دمعقولاتو اومحسوساتو عالم ـ دپوهې څلور ګوني درجې د علم ـ استدلال ـ ګمان اوحدس دبیلولو مفروضه کرښه .

**اووم کتاب** : دغار تمثیل د زمامدارانو لوړ تحصیلات ـ حساب هندسه نجوم ـ موسیقي ـ او دمناظرې فن ـ د ښوونې اوروزنې کړنلاره .

**اتم کتاب** : د جامعې اودانسان دنسل انحطاط د مطلوبې درجې څخه دښار انحطاط ـ د حکومتونو تنزل ـ تیموکراسي حکومت اوله هغه سره د متجانس فرد اخلاق د اولیګارشي حکومت ـ اوله هغه سره د متجانس فرد اخلاق دیموکراسي او ددیموکرات فرد اخلاق ـ د آرزوګانو په باب بحث استبدادي حکومت او د مستبدفرد اخلاق .

**نهم کتاب** : د اتم کتاب د بحث بقیه او د مستبد فرد د اخلاقي معایبو بیان ـ دعادل فرد او ظالم فرد دژوندانه مقایسه ـ آیا دنیکمرغۍ دلاس ته راوستلو دپاره ظالمانه ژوند ښه دی او که عادلانه. دنفس ددرې ګونو اجزاء ومخصوص لذتونه ـ په ظلم د عدل دبرترۍ ثابتول ـ په آسمان کښې دمدینه فاضله نمونه .

**لسم کتاب** : د شعر اوموسیقۍ تر منځ اختلاف ـ له حقیقت سره دتوصیفي هنرونو ارتباط په احساساتو د شعر اغیزه اوله عقل سره یې بې ارتباطي ـ په اخلاقو دشعر بده اغیزه ـ دروح بقا او دعدل اجر ـ دروح د بقا دلیل

د عدل بدله په دې دنیا کښې ــ په
آخرت کښې دعدل اجر ــ دآخرت
د ځړنګوالی په باره کښې یــوه
افسانه .

## جنګ اوسوله

### د تولستوی اثر

د جنګ او سولې کتاب د روسی
نامتو نیکوال تولستوی شاهکــار
دی او بنایې د روسی ادبــیاتــو
شاهکار هم وی دا کتاب په۱۸۷۸
کال کښې خپور شوی دی‌او خلکو
یې ډیر ښه هر کلی کړی دی .

**تولستوی** : د روسیې مشهــور
لیکوال او فیلسوف کنت لسونیکلا
یویچ تولستوی پــه ۱۸۲۸ کــال
کښې د خپل پلار او نیکه په ښار
(یازنایا یولیانا) کښې زیږیدلــی
سقراط د فلسفی مبانی بیان کړی
دی . دی یوی متوسطی روســی
کورنی تــه منسوب ؤ د ډیــرو
مؤرخینو او حتی پــه خپلــه دده
دعقیدی په خلاف دده کــورنــی
آلمانی نژاده نه وه .

دده نیکه اندرویــچ تــولستوی
د پتر کبیر له خوا د «کنت» پــه
لقب مفتخر شو . او پلاریې کنت
نیکلاس ایلیچ ډیر کلونه په‌نظامی
خدمت بوختؤ . د تولستوی‌پلار
پنځه اولاده لرل چه تولستوی یې
څلورم زوی‌ؤ . دغه لوی فیلسوف
سره ددی چه پخپله یو لوی ملاکؤ
درعیت پروری روحیه لرله .

د تولستوی مور په ۱۸۳۱ او
پلار یې ۱۸۳۷ کال کښې مړشوی
دی او دی د ځینو خپلوانو تر سر
پرستی لاندی رالوی شوی دی .
لومړنی تعلیمات یــی اشتبــاهــا
د فرانسوی ښوونکو له خوا شوی
نو ځکه نه روسی ادبیاتو سره دده
په آشنایی کښې ځنډ پیښ شو .
دی په ۱۸٤٤ کال کښې دقازان په
پوهنتون کښې چه په هغه وخت
کښې‌دبرلین دپوهنتون نه‌وروسته
دنړۍ ډیر لوی پوهنتون ګڼل‌کیده
شامل شو خو په درس کښې یی
څومره کوښښ نه کاوه او پــه
تدریج سره دپوهنتون‌له‌تحصیلاتو
څخه بیزاره شو او په ۱۸٤۷ کال
کښې له پوهنتون څخه ووت اوپه
خپلو مځکو کښې د کرهنی په‌کار
لګیا شو . مګر په دغه وخت‌کښې
وپوهیده چه دی د ملکی او خانی
له پاره وړ نه دی . په ۱۸۵۱ کال
کښې په نظامی خدمت کښې‌شامل
شو او په ۱۸۵۲ کال کښې یی
خپل لومړنی اثر «ماشوم توب»
ولیکه او هغه یی دروسیې مشهور
شاعر (نکراسوف) ته ورکړ چــه
دهغه خوښ شو . په ۱۸۵٤ کښې
دخپلی غوښتنی په اثر پــه هغو
عسکروکښې شامل شوچه‌ددانوب
په سیمه کښې د ترکانو په ضد
په جګړه لګیاوو . او د روسیې او
ترکیې د جګړې ترپایــه دی پــه
سبا ستوپل کښې پاتــی شــو .
وروسته له هغه سن پتر زبرګ‌ته

ولیږدول شو اوهلته یې دفاضلانو او ادیبانو مجلسونو او غونډوتـه لاره پیدا کړه . خو لږموده وروسته دی د هغوی له معاشرت نه بیزاره شو ځکه دوی یې له ځان نه راضي کسان ولیدل. ده داروپا د پرمختگونو په باره کښې ددوی لـه عقیـدو سره موافقه نه لرله او په هـمدغـه موضوع کښې یې لـه مشهـور لیکوال تور گنیف سره بحثونـه وکړل . په ۱۸۵۷ کال کښې یې له عسکري خدمت څخه استعفا وکړه او په همغه کال او ۱۸۶۰ کال کښې یې بیااروپا ته مسافرت وکړ . خو ده هم د داستایو سکی په څیر په دغو مسافرتونو کښې له غربي تمدن څخه د انزجارنـه پرته بل څه شی په سوغات کښې رانه وړل ــ ده ته عقیده پیداشوه تمدن په مادیاتو او طبقاتي سختو اختلافونو کښې ډوب دی .

د اروپا د دوهم مسافـرت نـه وروسته یې په خپله سیمه کښې هستو گنه غوره کړه او د خلکو د اصلاح کولو په کار بوخت شو او دخلکو دزامنو له پاره یې یـو ښوونځی جوړ کړ او له یوې نجلی سره یې چه له ده څخه ۱۶ کالـه کشره وه واده وکړ .

په ۱۸۷۳ کال کښې د (اناکارنینا) دکتاب په لیکلو سره یـې ډیـر شهرت پیدا کړ خو جنگ اوسوله دکتاب په خپریدو سره یې شهرت په ټوله اروپاکښې خپور شو .

تولستوی دخپل عمر په اواخرو کښې خاص افکار او عقاید پیدا کړل او د هندوستان لـه پیشوا گاندي سره یې فکري ارتباط درلود لکه چه ده هم د هغه په شان غوښه نه خوړله سابه او میوې به یـې خوړلې ده دخپلې کورنۍ له نورو افرادو سره زیات اختلافونه پیدا کړل ښځه یې دده له افکارو او عقایدو څخه ډیره بیزاره وه بالاخره یوه شپه تولستوی د خپلې لور الکساندرا په ملگرتیا پټ له کوره ووت دی په استا پغوی کښې څو ورځې داورگاډي دستیشن درئیس په کوټه کښې نـاروغ ؤ او بیـا د ۱۹۱۰ کال د نوامبر په اتمه نیټه مړ شو . څو ورځې وروسته یې تولستوی بې له رسمي او مذهبي تشریفاتو په یازیانا کښې خاوروته وسپاره .

**جنگ او سوله :** دغه ستر کتاب چه د روسي ادبیاتو شاهکار دی د ۱۸۲٤ ــ او ۱۸۶۹ کلو ترمنځ لیکل شوی او په ۱۸۷۸ کال کښې چاپ شوی دی .

د داستان اصلي محور هغه لویه جگړه ده چه په ۱۸۰۵ـ او ۱۸۱۲ کلو کښې د ناپلیون بناپارت فرانسوی امپراتور او د روسیانو تر منـځ شوې ده . په دغه کتـاب کښې دروسیې دعالي تولنې یعنې داعیانو او اشرافو دطبقو ژوندی څیره ایستل شوې ده او دغه تابـلو

د بولکو فسکي او د استف‌دکورني
په تصوير ولو سره مجسمه‌شوي
ده د نيکلا استف شخصيت چـه
فعال او با نشاطه سړی دی داندره

بولکو نسکي په مقابل کښې چه
يو هوښيار او زيرك سړی نه‌دی
په نظر کښې نيول شوی‌دی . کله
چه بدبخت بولکونسکي دا خبره

حس کوی سره ددی چه داستف
د کورنی په ډيره ښکلی نجلـی
«نانا شار ستف» باندی مين دی

خو څرنگه چه ددی د تحقير وړدی
او کوکه ورڅخه لری نو مايو سه
کيږی خوکله چه د «برودينو» په

جگړه کښې ډيرسخت‌ټپی اومرگ
ته نژدی کيږی له‌خدای سره‌دميني
او اخلاص په درلودو دنجات اميد
پيدا کوی .

ناتاشا يوه هوس بازه او سر
سری نجلی نه ده او يو هيڅری چه
ټولی اشتباه گانی يی له ځوانی
نه نشأت کوی نو ځکه دا داندره

بولکونسکي او دخپل ورور لـه
مرگ نه وروسته په خپل‌خاص
رنه ذهنيت چه دده يو ممتازصفت

دی‌له‌يولايتی زلمی «ی‌ير بزوخف»
سره نژدی والی پيدا کوی اوخپل
زړه وربانـدی بايلی . دغه زلمـی
چه صفات او مشخصات يي داستان

ليکونکي ته ورته دي يو فکوراو
ايديالی سړی دی اونه غواړی‌چه
ځان له خپل آرام او هوسا ژوند
سره موافق کړی سره ددی چه

دی ډيری مځکی لری او زيات‌خلك
يی په خدمت کښې دی د زراعتي
اصلاحاتو او د بزگرو د حالـت
ښه کولو په اقداماتو لاس پوری

کوی خو په خپل فکر نه بريالی
کيږی . خو بيا د روسيي ملـت
دآزادی دساتنی له پـاره تصميم

نيسی او ناپليون په مسکو کښې
وژنی او دی هم وژل کيږی .
په دغه تاريخی داستان کښـې

داسی ښيکا لوژی تحليلات‌او تجزيه
په کار لويدلی ده چه له هغـی
څخه د تولستوی خاصه فلسفـه
څرگنديږی د خپل‌کتاب‌له قهرمانو

سره دتولستوی علاقه او مينه په
ښه شان‌څرگنديږی دساده‌سپاهی
«کارا تايـف» څـخه نيولی تـر
ستر روسی قوماندان «کوتوزف»

پوری چه له هر ډول تعـرضـی
حرکت څخه يی سترگی پټی کړی
او غليم يی په صبر عدم تجاوز

بی جور او ظلم څخه مات کړی
دی دداستان قهرمانان دی .
لکه چه وموويل د ناپليونی جنگ
په زمينه کښې دوه شخصيتونـه

په حماسي مرکز کښې راغلي دي
چه یویې اندر بولکو نسکي او بل
یې «پي یر بزوخف» دي چه دواړه
په تدریج سره دفتنو او پریشانیو
په موقع کښې دارام او سوله ناك
ژوند طریقه پیدا کوي . هغه
ترازیدي فردي اړخونوچه داجتماعي
هنگامي په ځنګ کښې پیدا کیږي
دغه جالب اثر لوی کتاب ګرځولی
دی . د نړی په ادبیاتو کښې
دا امکان ډیر کم دی – چه فردي
او تاریخي سرنوشتونه دی په
داسي قدرت او عظمت سره تر
سیم شوي وي . بایدوویل شي چه
دجنګ اوسولي حماسه زیادتره په
خپله دتولستوي دبارزي اوشخصي
فلسفي ترجماني کوي دده دغه
فلسفه داسي خلاصه کیږي .
دعالم خالق خدای (ج) د نیکي
اومنطق ظاهرونکی دی اوعیسی (ع) نه
دی کبله نه چه د خدای زوی دی
بلکه له دی امله چه تعلیمات یې
د انسان له وجدان څخه مغایرت
نه لري لوی شخصیت دی بو دا
او نور لوی شخصیتونه دي هم
په همدغه اندازه باید د احترام

وړ وي او حق او حقانیت یوازې په
حضرت مسیح منحصر نه دی .
دی عقیده لري چه عالم خدای
دجهان حاکم دی او په زړونو حکومت
کوي بشر باید ښه کارونه وکړي
له خپل همنوع سره مینه ولري
او خپل نفس دی د طمع – شهوت
او غضب له منګولي څخه خلاص
کړي چه حقیقي نیکمرغي وګټلای
شي . دتولستوي له نظره نه یوازې
جګړي او دوینو تویول بلکه هرډول
فشار او جبر چه د دولتو او
امپراتوریو په سیاست کښې وي
خیانت او جنایت ګڼل کیږي او
یو رښتیاني مسیحي دی باید په
دغسي جنا یتونو او عسکري
خدمتونو او دولتي مشاغلو کښې
ګډون نه کوي او تر څو یې چه
وسه وي له وکالت او قضاوت او
داسي نورو چارو څخه دي ډډه
وکړي . تولستوي وایي که چیري
له دولت سره په مخالفت
ښولو کښې جبر شامل وي ښه نه دي
او کوم دردنه دواکوي ( داخبره د
تولستوي او دګاندي دفکر ورته
والي ښيي )

انقلابی فعالیتو نه کـه هغـه بیچارگانو او مظلومانو د حمایی دپاره هم وی څه ثمر نلری ځکـه چه دغه راز فعالیتونه دبی اتفاقی او دښمنی تخم شیندی .

تولستوی عقیده لری چه بشری نظم او انضبـاط هـغـه وخت لاس ته راتلای شی چه خلك له یو بل سره‌رښتیانی دوستی ولری دی داهم وایی‌چه بدایان بی‌سببه دیو خراب طبقاتی تمدن په منځ‌ته راوړلو ځان ته‌ارزښت ورکوی او باید دغه رجحان له منځه یوړ ل شی . دی دهغی ورځی ارزوکوی چه دعشق او عطوفت مارغه خپل زرین وزر په ټولـو مـوجوداتـو وغوړوی او په‌ایدیالی عالم کښې بشر یودبل له‌وژلو اودځار وو له خوړلو څخه ډډه وکړی .

## د تیبو کورنی

### دمارتن‌دوگاراثر .

دا نوی کتاب دفرانسوی معاصر لیکوال مارتن دوگاراثر دی چـه د نوبل جـایـزه ئی وړی دی دا داسی یو عمیق‌اثردی چه‌دفرانسی ټولنه ئی په معاصره پیړی کښې په ښه توگه تشریح کړی ده .

روژه مارتن دوگاریو فـرانسوی لیکوال دی چـه په ۱۸۸۱ کـا ل کښې په (نـوییی‌سورسن) کښې زیږیدلی دی‌او پـه ۱۹۵۸ کښې په «بلم» کښې مړشوی دی . هغو تحصیلاتو چه ده په په خـوانیو علومو په تیره دلر غونو لیکنو په لوستلو کښې کـړی دی دده پـه زوند اغیزه کړی ده .

پـه کـار کښې سخت انضباط او خاص روش او سبك لرل دده له ممتازو صفتونوڅخه دی دی‌چه دپخوانیو خطونو لوستونکی ؤ په ۱۹۰۹ کال کښې ئی په دی باب یوه رساله خپره کړه چه ډیـره دتوجه وړ وگـرځیده . بـیائـی په ډیر احتیاط او تردد په لیکوالی لاس پوری کړ او دوه رومانـونه یی خپاره کړل‌چه‌دومره دتوجه‌وړ و نه‌گرځیدل خو مارتن دوگـا ر مایوسه نه‌شواوپه۱۹۱۳ کال‌کښې ئی یولوی رومان دژان باروا پـه نوم خپورکړ چه دغه‌اثر ده‌ته‌ادبی مقام و بابنه دلومړی بین‌المللی جگـړی نـه وروسته ئی د «تیبو کورنی په نامه خپل اصلی شاهکار وړاندی کړ چه‌په ۱۱ جلد وکښې خپور شو په‌دغه رومان‌کښې‌دشلمی پیړی په اوایلوکښې په‌قوی توگه دفرانسی ټولنی تحلیل‌شوی‌دی . چه کتاب داوس وخت یو ډیرقوی ادبی اثر دی .

(دتیبوکورنی) له ۱۹۱٤ څخه دمخه د فرانسی د متوسطی سرمـا یه داری طبقی کره‌وړه ښیی سبك‌ئی ډیر محکم ا و ســاده- روان ا و

طبیعی دی‌او انسان‌ته «موپاسان» ورپه زړه کوی‌خودکتاب لیکنی‌ئی «موپاسان» څخه هم‌قوی اوژوندی دی او په‌لوستونکی داسی اغیزه

کوی چه دی گمان نه کوی کتاب لولی بلکه دی ځان د داستان له قهرمانانو سره یو ځای گڼی او

فکر کوی چه له دوی‌سره گډژوند لری .

**دتیبو کورنی** . دغه لوی رومان

چه اته برخی لری د‌شلمی پیړی په لومړی برخه کښی د دوو فرانسوی کورنیو

ژوند د مرتبو پینځو په‌څیر تعریفوی. داد وی کورنی یوه تیبوده چه مذهب ئی کاتولیک دی دوبله ئی د وفونتانن ده چه په پروتستان

مذهب عقیده لری . دفونتانن کورنی تریوه حده په تنها ئی اوانزوا کښی ژوند کوی — د داستان مهم شخصیتو نه دری تنه دي چه‌دری‌واړه په تیبو کورنی پوری اړه لری .

دوی تکړه اوفعال خلك دی . د کورنی مشر یالوی تیبو یوشته من مستبد سړی دی غم اووهم ئی دادی چه د کاتو لیکی نظم او انضباط هر چیرته او په‌هرچا تحمیل کړی . دکورنی مشر زوی انتوان ځان ډټولنی‌دخدمت له‌پاره

وقف کړی دی او طبیب شوی دی او دتیبو کشر زوی ( ژاك ) خپل خلاقه قدرت دټولنی په ضد په کار اچوی او یو تحول طلبه

زلمی ور څخه جوړیږی .
ددغه لوی اثر په لومړی ټوك کښی چه « خړی پیغله » عنوان

لری دوه ۱۴ کلن زلمیان یعنی ژاك تیبو او فامیل‌دوفونتانن خپل نهائی اسرار اواشعارپه‌یوخړرنگی دفتر کښی یوبل‌ته‌تبادله کوی‌یوه ورځ مشران دغه دفترگی کشف کوی‌اولیکل شوی‌مطالب‌یی‌لولی‌او په بده توگه ئی تعبیر وی ژاك چه

دخپل مورواوپلار له کار اوسؤ تفاهم څخه خجل شوی اوناآرامه شوی دی او دانیل دځان ملگری کوی او دواړه د خپلوخپلوکورنیو

څخه لیری ځایوته تښتی په لاره کښی ډیر تکلیفونه‌اوصدمی‌وینی. دد واړو هلکانو خپلوان دې وی په لټوته پسی‌گرځی‌خواخر دواړه بیرته پاریس ته بیائی د د انیل مورچه هوښیاره او پوهه‌ښځه ده

دا نیل ته څه‌نه‌وایی مینه‌اومهربانی وربانډی کوی . خودژاك پلارخپل زوی دارالتادیب ته‌چه په‌خپله ئی

جوړ کړی دی استوی . په دوهم ټوك کښی چه‌دزندان عنوان‌لری ( ۱۹۲۲ ) د ژاك په روحیه د

دارالتادیب نتیجه بده‌اغیزه لري. مشرورورئی انتوا ن چه پــه پټه کښی دژاك په نسبت دخپل پلار بدی رویی څخه خواشینی دی یوه ورځ دخپل و رور دلیدوله پاره دارالتادیب ته ورځی گـوری چه هلك خپل نشاط دلاسه ورکړی‌دی چه دده دروحیی پــه غم جنی او خواشینی کولــو کښی ئی دعامی او مبتذلو ساتونکو روش هــم بی اغیزی نه دی انتوان دخپل پــلار دلجاجت سره سره دخپل ورور په خوشی کولو بریالی کیږی او ده ته داسی کوښه ورکوی چه په هغی کښی له مور او پلارنه جلا ژوند وکړی .

په دریم ټوك چه دخوښی فصل عنوان لري (۱۹۲۳) وروسته له هغه چه ژاك پنځه کـالــه دخپل ورور تر څارنی لاندی ژوند کوی په یوه عالی‌ښوونځی کښی شامیلږی خو دی تصمیم نیسی چه له هغه فارمولیتی ژوند څخه چــه د مخه ورته تنظیم شوی دی ځان خلاص کړی . سر ه ددی هــم خــپلی د رخصتی ورځی‌یی‌دپلار په‌یوه‌کلیوالی ماڼی کښی دیوی پیغلی« ژیر » په گاونډ کښی تیروی . ژیر یــوه یتیمه نجلی ده چه ژاك تل دی ته دیوی خور په سترگه گوری . خو پــه‌دی تــرځ کښي دی ددانیــل فونتانن له خور ( ژنی فونتانن ) چه یوه مرموزه اوداور سکروټــه پیغله ده څه‌ناڅه روابطه لري. په اول کښی خو داسی ښکاریده چه دژاك اوژنی او به په یوه ویالــه کښی نه ځی په دغه وخت کښی میرمن فونتانـــن دخپل میړه لــه بی‌وفاییو اوچټی گــرځیدو څخه په تکلیف کښی د ه ــ انـتوا ن تیبو هم په یوه ماجراجواو مرموز نجلی مین شوی دی .

په څلورم ټوك کښی چه دمعاینی په نامه دی ( ۱۹۲۸ ) ژاك یوځل بیاورك کیږی او تر دریو کالــو پوری ئی پته نه لگیږی ــ لــوی تیبو دکورنی مستبد پلار ناروغه کیږی انتوان چه‌دده‌معالج‌داکټرهم دی نظریه ورکــوی چــه مر یض په خپله مخه تلونکی دی . په دغه ځای کښی داستان دزلمی ډاکتر دژوندانه یوه عــجیبه ورځ ښیی یعنی دپلار دناروغی په‌مقابل‌کښې دده انسانی عکس‌العمل او هــغه جگــړه چــه په بــا طن کښی ئی شروع شوی ده تشریح کوی . (دا داسی موقع ده چه دکــورنی نور غړی له ده څخه غواړی چه په یوه پیچکاری سره ددغــه سخت ناروغ له تکلیفونو څخه ډك ژوند ته خاتمه ورکړی ) چه د داستان دغه قسمت ډیر په زړه‌پوری دی. په پنځم ټوك کښی چه سورلــیا (کوچنی خور ) نومیږی( ۱۹۲۸) څرگندیږی چه ژاك تراوسه‌پوری ژونډی دی ــ یوی سویسی مجلی یوکوچنی داستان دسو رلینا پــه مستعا ر نو م ځــپور کــړی دی

اوانتوان حدس وهی چه دغه لاس لیك باید دژیر ( کوچنی خور ) اویا دژنی وی .روزانته خپل دوروریه لته پسی ځی او هلته ژاك چه په یو ډله کښی شامل شوی دی پیدا کوی .

شپږم جلد دپلار دمرگ په نامه د تیبو دمرگ په باره کښی یو هیجان راوستونکی داستان دی . انتوان دژاك په موافقه بوډاته پیچکاری ورکوی چه یو آرام او راحت لرونکی مرگ ورته راولی او دی له ټولو کړاوونو اوزحمتونو څخه خلاصوی هغه اسناد چه د هغه مرحوم دمرگ وروسته لاس ته راځی څرگندوی چه دتصور په خلاف لوی تیبویو خرافات پسند نه بلکه رحم او شفقت روحیه ئی لرله اودیونا آرام وجدان خاوندؤ دتیبودجنازی مراسم په هغه دارالتادیب کښی کیږی چه ده په خپله جوړکړی وه انتوان پاریس ته دبیر ته تگ په وخت کښی داورگاډی په یوه کوټه کښی دا بهوکار کشیش سره یو ځای ناست دی او دمرگ په باره کښی یی مباحثه توده کړی د ه خو په دی باره کښی یو دبل نظریی سره مغایرت اوبیلتون لری .

په اوم ټوك کښی چه اوړی نومیږی (۱۹۱٤) دافرادو دژوند ډر امه داجتماع دژوند غوښتنی له مخی پیژنو . ژاك چه په خپلو اجتماعی خدمتونو بوخت دی دژبر د عشق په مقابل کښی مقاومت کو ی بیا سویس ته ځی او دژنیو او پاریس بروکسل او برلین د د بین المللی محافلو د روا بطو ساتلو وظیفه په غاړه اخلی . او په دی ترخ کښی هڅه کوی چه انتوان هم خپلو سیا سی عقاید وته ورگرځوی .څوانتوان لومړی ددغو خبروله منلو څخه چه امکان لری په آینده کښی به جگړه وشی او انقلاب به پیښ شی ډده کوی . بالاخره په ټاکلی ورځ جگړ ه پیښیږی او ژاك له خپلی ډلی سره ملگری کیږی. په دغه وخت کښی یو ځل بیاژنی دوفونتانن پیداکوی او داخل سخت زړه ور باندی بایلی دواړه یو دبل په ملگرتیا د فرانسو ی سو سیا لیست سیاستمدار ژورس په وژلو کښی برخه اخلی . دسولی دراوستلو فکر دژاك په ماغزو کښی پیداکیږ او عقیده پیدا کوی چه اوس نو باید دسولی وړانگی په دواړ و غلیمو ډلو ولگیږی . ژنی چه امکان یی درلود ددی حضو ر د ژاك فعالیت فلج کړی نه ورسره ځی اوله خپلی مورسره پاتی کیږی . ژاك ژنیوته بیرته ځی او دیو پیلوت په مرسته دجگړی دجبهودپاسه تیریږی او عسکروته دسولی غوښتنی لیکنی او اعلامیی خپروی

الوتکه ئی راغورزیږی او ژاك سخت ټپی کیږی او دجاسوسی په تومت بندی کیږی او دپلیو عسکرو هغه ټولگی ته یی بیایی

چه د په خپ تللو په حال کښی
دی . کله چه په دغـو عسکـر و
کښی وحشت راپیدا کوی ژاك
له پښو غورځوی (په‌اتـم ټـوک
کښې چه نتیجه نومیږی) انتوان
تیبو چه جنګی ګـازونـو سخت
مسموم کړی دی دجنوب په یوه
روغتون کښی ترمعالجی لاند ی
دی او دژر روغیدو امید لـری .
کله چه دی دویرینی په یو محفل
کښی د ګډون کو لو لـه پـاره
پاریس ته ځی دانیل فـونتانـن
ګوډه شوی وینی ژیراوژنی هـم
په پاریس کښی دی او هغه‌دخپل
کوچنی زوی چه ژان پل نومیږی
او دژاك اوژ نی دعشق ثمر دی
پالنه کوی . دغه‌هلك‌ډیر هوښیار
او یـو حسابی تیبو ګڼل کیږی
انتوان پـه پا ریس کښی خـپل
پخوانی استاد ډاکتر فیلیپ هـم
وینی اوحدس وهی چه ډاکتر دی
دګاز دمسمومیت په وجه فیصله
شوی ګڼی نو ځکه پرته له دی‌چه
په صبراوبردباری‌وروستیو نتایجو ته
منتظر شی بله چاره نه لری .

انتوان دخپلو ورځینیو خاطراتـو
دفتر لیکی چه ماشوم‌ژان پل‌خپل
تره ښه وپیژندلی‌شی ځکه‌چه‌دغه
هلك د دومنقرضوکورنیو تیبو او
دوفونتا نن یوازیـنی روښا نـه
یادګار دی چه ددوی نغری به‌تو د
وساتی . انـتوا ن د عـمومی بی
وسلی کولو داعلانیدو نـه څـو
ورځی وروسته مړ کیږی.

## دتلی عمرلټون

### دمارسل پروست اثر .

دتللی عمرلټون کتاب چه په څو
جلـد وکښې لیکـلی شوی دی د
فرانسی له معاصرو ادبیاتو څخه
دی چه دمارسل پروست په قلـم
لیکلی شوی دی .

د کتاب لیکوال په ۱۸۷۱ کـال
کښی په پاریس کښی زیږیـدلی
دی – پلاریی ډاکتر ؤ او وروریی
هم دطبابت وظیفه لرله . خودده
له‌پلاره دخپـل پلار د بډایی پـه
سبب دبیکاره ګرځیدو امـکـان
موجود ؤ دغه لیکوال له مـاشوم
توب څخه له نفسِ تنګی نـه پـه
تکلیف ؤ چه دغه حـا لت سبب
شو چه له ده سره د ادبیاتوشوق
پیدا شی او ورو ورو هنر دخپلو
ارزوګانـو انتهاوګڼی . تـر ۳۵
کلنی پوری ئی پـه تجمـلی ا و
تصنعی محیط اشرافی سا لونونو
اورستورانو کښې چه په اوسنی
سیستم جوړ شوی‌ووژوند تیرکړ
او دخپلی کنجکاوی له مخی ئـی
دپوښتنی له‌لاری ډیری نکتی زده
کړی . دده دتخیل‌قدرت‌دروحیاتو
له نظره ډیر قـوی ؤ پـه ۱۹۰۶
کال کښی چه له مشاهـد اتو او
مطالعاتو څخـه ستړی شو ی ؤ
مزاجی حالت ئی تقاضا کوله چه
استراحت وکړی . ده په‌دغه‌وخت
کښی دخپل ماشوم توب ددوری
روښانه خاطری «دتلی عمرلټون»
ترعنوان لاندی لیکلی .

ددغه کتاب لومړی جلد « دسوان
دکور له خوا .. .. » په ۱۹۱۳
کښی خپور شو خو دادبی ټولنو
توجه ئی ورجلب نه کړه . مګر
هغه وخت چه دده دکتاب دو هم
جلد « د نویو غوړیدلیو نجو نو
ترسیوری لاندی .. .. » په
۱۹۱۹ کال کښی دګنکور نایل
جایزه واخستله دپروست‌شهرت
او افتخار له همدغه ځایه شروع
شو . مارسل‌پروست ته‌دافرصت
په لاس ورغی چه دخپل کتاب‌دوه
نور جلدونه« د ګر ما نت دکو ر
له‌خوا» او (سودوم‌او ګمرم) هم
خپاره کړی . دی په ۱۹۲۲ کال
کښی مړ شو .

**کتاب :**

دا کتاب دفرانسي اوبنایي دنړی د
معا صرو ا د بیا‌تو له مهمو
آثار څخه دی دکتاب قهرما ن

هلته تیری کړی دی تشریح کوی
او دخپلی مور رو انـا او هغـو ـ
ماشو مانو په باب خبری‌کوی چه
ده ورسره ژوندکاوه .
دغه راز خپل هغه تنګ اوراتګ
یادوی چه د « سوال‌کور » او
« ګرمانت کور » ته یی کاوه . د
داستان دوهمه برخه‌چه « دسوان
عشق » نومیږی سندر غاړی رانـا ګز
د « سوال » کورته بیائی . په‌دغه
برخه کښی نور دماشوم توپ د
خا طر و یادون نه دی شـوی بـلکه
هغه خاطری شرح شوی دی چـه
ورروسته راوی ته چه اوس زلمی
شوی دی‌پیښی‌شوی‌دی اوهمدغه
خاطری دی چه‌دی وربانده‌دمینی
معنی درك کولای شی . سوان‌چه
یونازك طبع اما تـو ر دی ډیـر
هوښیار او زیات بهای سړی دی
او اجتماعی شخصیت لری . دغه

خپله قصه په خپله بیا نوی او په سړی په یوه ماجراجویه نجلی
حقیقت کښی دغه‌قهرمان په خپله چه « او دت کـر سی » نـو مین ی
له پروست‌نه پرته بل‌څوك نه دی مین کیږی نجلی له هری لاری که
دکتاب قهرمان یوعصبی‌ـبدخویه وی سوان ته‌آزار او اذیت‌پیښوی
او نازولی زوی‌دی چه‌له‌اشرافی ټولنی آخـر دی لـه دی سره ازدو اج
په تفرعاتو او دناوړ و معاشقو په کولوته مجبور وی . په دغه‌ماجرا
فضا کښی‌رالویږی. لیکن ژرورته کښی ډیر اشخاص ګډون لـری
څرګندیږی چه‌عشق‌عینی حقیقت ندی‌چه دوردورن کـورنی‌هم‌پکښی شامله
او ددنیا تجملات په ژرپیکـه او ده ددی کـورنی افـراد اشراف
مبتذل شی . اوشته من دی چه‌غونډی اوټولنی
د داستان راوی‌چه‌په خپله دکتاب ئی نه خوښیږی او ده هنرمندانو
قهرمان دی لومړی د(کومبره) دلوی دتشویق‌لو او تحسین کولو تظاهر
کلی وضعیت چه ده دماشوم‌توب کـوی .
په وخت کښی ئي خپلی رخصتی دسوان اوماجراجـو نجـلی له

وصلت شخه یوه کوچنی نجلی
(ژیلبرت) پیدا کیږی د داستان
راوی وایی چه دغه نجلی به یی
د شانزه لیزه په واټ کښی ډیره
لیدله ( لومړی جلد ) .
ژیلبرت سوان د داستان له راوی
سره دکلوکلو معصومانه دوستی
نه‌وروسته له ده شخه جلا کیږی
خولږ موده وروسته ددی حساس
زړه د سیند په غاړه چیرته چه هلته
نوی رسیدلی نجونی ډیری دی
له مینی شخه متأثر کیږی ددوهم
ټوك عنوان «نوی غوړیدلی پیغلی»
له همدغه جهته دی . دا ټولی
نجونی دراوی خوښیږی‌خوله‌یوی
تنی « البرتین » سره یی علاقه
زیاتیږی خو هغه نجلی له ده‌سره
ښه وضعیت نه‌کوی دی په دغه
وخت کښی دداستان‌له نورومهمو
قهرمانانو سره چه عجیب سړی
او فاسد الاخلاقه انسان « بارول
دو شاریو » نقا ش « الستیر »
اولیکوال «برکوت» سره مخا مخ
کیږی ( دنویوغوړیدلو لیو نجونو
تر سیوری لاندی ــ دوهم جلد)
له هغه وروسته‌راوی د «گرامانت»
دکور خوا ته مخه کوی او له دوش
گرامانت سره چه یوه د بد به
لرونکی او مغروره ښځه ده خپله
مینه له نا امیدیو سره ښکار ه
کوی . تردی وروسته دکومبره دښار
اشرافی سالونو ته ور ځی
او دغه مودی دپاره‌هلته استوگنه
غوره کوی . (دریم جلد) .

په دی وخت کښی دسو دوم
او گمور گناوی‌اوجنایتونه‌بیانوی
اوله البرتین سره له ناامیدیو
ډکه مینه کوی . داهغه ښځه ده
چه د داستان راوی داڅو مود ه
دمخه ترنورونجونو ښه بللی‌وه
خو مینه ئی زیاته له حسد نه وه
نه له عشق نه .
له البرتین سره نامزد کیږ ی
خود دانامزدی صریحه نه ده بی
له دی چه له هغی سره دواده ــ
کولو تصمیم‌ونیسی‌نوموړی نجلی
یوازی دځان دپاره منحصره او
مقیده کوی داخبره چه آ یا په رښتیا
البرتین وربانډی‌گرانه ده اوکنه.
تراوسه نه ده څرگنده شوی ــ
کله چه دده دجسار ت حس له
مشهو دو دروغو شخه ځی نو بیا
دا اوربانډی گرانه د ه خو هغه
وخت چه له دی او ددی له وفا
شخه ئی زړه جمع شی بیا نو وربانډی
گرانه نه‌ده .

تردی دمخه « اودت کرسپی »
هم په همدغه ډول دسوان له
سادگی شخه ناوړه استفاده کوله
(دزندانی فصل ) .

بالاخره یوه ورځ البرتین تښتی
او په « توان » کښی دخپلی‌کومی
عمی اویا ټوړی په کور کښی
ځان پټوی . د غه نجلی هلته داس
سورلی په یوه تصادفی پیښه
کښی مړه کیږی . دغه موضو ع
دراوی د غم پاروو نکی تخیل له

پاره یـوه دردیدونکی صحـنه ده
( دالبرتین ورکه کیږی فصل ) .
راوی د ډیری مودی نه وروسته
بیرته پاریس ته ځی . په همدغه
وخت کښی دنړی جګړه شروع
شویده . جګړی اجتماعی تحولات
وړاندی بیولی اودژوندانه دحالت
ترقی اوپراختیایی ګړندی کړ ی
ده . هغه شخصیتونه چه دکتاب
په لومړنیو برخو هر یو پهخاصه
ډله او طبقه پوری مربوط و پهدغه
ځای کښی یو له بلهسرهنژدیشوی
دی . میرمنوردورنله دوك دوګر
مانت سره په داسی وخت کښی
واده کړیدیچهد دویدسرویښتان
یاسپین شوی اویا شناوی شوی دی
په همدغه ځای کښی خـواشینی
او پریشانه راویدنورودزړهبودی
په لیدلو سره په خپل بوډا تو ب
هم پوهیږی دا احساس هغهوخت
ده ته ډیر پیدا کیږی چه دګرمانت
یانو د کـور پـه غـو لی دده پښه
ښوییږی او په مځکه لو یـږی .
په همدغه وخت کښی ده ته ورپه
زړه کیږی چه په ځوانی کښی یی
یوه ورځ خوږهډوډی له چایوسره
خوړلی ده د ډوډیخوړلو دخاطری
په زړه کیده سره سم ده تـهئی
دماشوم توب د دوری پیښیهـم
ور پهزړه کیږی ددغو خاطراتـو
ور په زړه کیدونه نهوروسته فکر
کوی چه خپل تـلف شوی عـمر
بیرته لاسته راولی .

خو ځنګه کیدای شی چه تللی
عمر بیرته راوګـر ځول شی .
راوی له دی خبری نهداسینتیجه
اخلی چه باید مبهم اونـامعلـوم
تصورات او دژوندانهپه زړهپوری
خاطری چه زمونږ پـه ذهن اثر
اچوی او مونږ ته دنیکمرغی معما
طرح کوی له ذهن څخه راواخلو
او په هنری اثر کښی یی ژوندی
وساتو او په داسیتوګه یی ثبتی
کړو لکه عکاس چه دکاغذ په مخ
یی ثبتوی .(دبیرتهلاستهراوستلی
عمر فصل .

دپروست د لـیکنی مـتن ډ یـر
کړکیچی او پیچلی دی . دلیکوال
دغه مـقصد چه ده غوښتـنی دی په
لازمو ځـایو کښی خپل شخصی
خصوصیات دداستان دقهرمانانو
له خصوصیاتو سرهیوځایراوړی
ددی سبب شوی چـه د داستان
ځینی جملی یی مغلقی ــ پیچلی
اوږ دی حتی کله کله لـه اد بی
نظره صحیحی نه دی. خو دکتاب
ښیګڼی یی په بد یو ز یاتی دی کـه
څوك د(پروست)
د تخیل پهقوتسمسورشوی دغه
ځنګل ته ور ننوزی لطیف او نری
احساسات بهووینی اونورمشاهدات
بهیی ډیرپه زړه پوری په نظرکښې
ورشی او دغی رنګیـنی دنـیاته
ورننوتلی شخص به بیرته ور څخه
خوښ اوخوشحاله راووزی .

دغه استاد دتجزیـی اوتحلیل ا و
توصیف فوقالعاده قدرتلری دی
داحساساتو اوعواطفوپه شرح کولو

ترسیمولو کښې قوی لاس لری.
هنرته دلیکوال توجه دومره زیاته ده چه‌د سمبولیزم سبك یی دپیدا کیدو سره سم بلوغ ته‌رسولی‌دی. دی‌په حقیقت کښې دلوی انگلیسی لیکوال راسکین د ذوق اوقریحـی مترجم اومفسر او دبنکلا د مذهب مقدس حواری دی .

## ډاکټر ژیواگو

**دبوریس پاسترناك اثر :**

دډاکټر ژیواگو کتاب یونوی اثر دی چه دنوبل ادبی جایزه‌یی‌اخستی دی او یو مهم ادبـی او سیاسی جنجال یی زمونږ په پیړۍ کښې پیښ کړی دی دکـتاب لیکوال معاصر شوروی لیکـوال بوریس پاسترناك دی .

بوریس پاسترناك په ۱۸۹۰ کال په مسکو کښې زیږیدلی دی او په ۱۹۶۲ کال کښې مړ شوی دی دی دخپلی کورنی مشر زوی ؤ پلار یی لیدونید پاسترناك دعصرله‌مشهورو نقاشانو څخه گڼل‌کیده اودخپلی زمانی دپوهنی اوادب له‌لویوکسانو سره‌یی ارتباط درلود .حتی‌دهغوی بنکلی تصویرونه یی جوړ کـړ ی دی.

دپاستر ناك مور «اوزاکونمان» نومیده اویوه پیاوړی پیانیسته وه دپاستر پلار دخپلی کورنی سر ه انگلستان‌ته مسافرت وکړ او بیاپه همغه هیواد کښې مړشو.بوریس پاسترناك له خپل هیواد څخه‌له وتلو څخه ډډه وکړه او دخوږو او له معنی ډ کو اشعارو اوپـه زړه پوری رومانو په‌لیکلو سـره‌یی د شوروی لیکوالو په منځ کښې لوړ مقام پیداکړ. په دی وروستیـو وختو کښې یی ځانگړی توب خوښ کـړ اودانگلیسی ژبی دآثارو په ترجمه‌یی وخت تیراوه چه بالاخره یی دډاکټر ژیواگو کتاب ولیکه او په دی وسیله یـی شهـر ت هری‌خواته تیت شو اوپه۱۹۵۸ کال‌کښې دنوبل دجایزی په‌اخستلو بریالی شو ځینو کسانو دډاکټـر ژیواگو کتاب دتولستوی دجنگـ او سولی کتاب سره برابر بللی دی .

### داکتر ژیواگو :

لس کلن یوری ژیواگو دشلمی پیړۍ په‌لومړنی‌کال کښـې خپله گرانه مور له‌لاسه ورکړه . ددغی ضایعی نه خوکاله دمخه دژیواگو ملیونر اوعیاش پلار دبـلی بنځی په سبب له‌خپلی کورنۍ څخـه لاس مینځلی ؤ اوبیادخپلی‌شته‌منۍ دلاس ته ورکولو په اثر یی ځان داورگاډی نه غورځولی او مړشوی ؤ خرنگه چه یوری‌ژیواگوبل څوك نه‌لرل نو فـاضل مامایـی چه نیکلایویچ نومیده دده پـالنه او روزنه په غاړه واخستله .څوموده وروسته دیوری ژیواگو ماما سن پتر زبرك ته‌لاړ اوخپل‌خوریی یی یو خپلوان ته‌چه گرومیکو نومیده وسپاره گرومیکو دوه‌وروڼـه‌لرل چه یو الکساندر نومیده او بل یی

نیکلا ی نومیــده اودواړه دشیمي
استادان وو اوله گرومیکو سره‌یې
یو ځای ژوندکاوه دوی‌له سیاست
علم او ادب سره سخته علاقه‌لرله
نو ځکه هغه کورنــی چــه یوري
ژیواگو په‌کښې ژونــدکــاوه عادي
کورنی نه ښکاریده بلکه‌علمي او
هنري مرکزته .
ورته‌یوه کورنی وه .
دنیکلائی ښځې انایوانو انومیده اود
لورنوم ئې ټونیاؤ. یوری‌یهودي نجلۍ
چه میشا گــور دن نومیــده هم پدی
کورنۍ‌کښې ژوند کاوه اوپه نیکلای
او ښــځې یې د لــو ر پــه شا ن
گرانه وه .

یوري ژیواگویو هــوښیار هلــك ؤ
او ښه استعداد یې درلو د هــغو
پرمختگونه چه په تحصیل کښې
به دده په برخه‌کیدل‌ده ته کورنی
دټولو افراد وتوجه‌جلب کړی وه.
تو نیادیوری همځولی وه دی او
میشا ډیر زرله ده‌سره‌انس‌پیدا‌کړ
خو دیوری او میشاتر منځ علایقو
بل صورت در لود .

په ۱۹۱۲ کال کښې‌یوری ژیواگو
تو نیااو میشاپه تر تیب سره په
طب ـ حقوقو او فلسفه کښې‌بری
لیکونه واخستل ـ یوری سربیره
پر طبابت په ادبیاتــو او فــلسفه
کښې هــم لاس درلــود ډ یر ښه
شعریې وایه او ښه‌شي یې‌لیکلای
شو .
دنوئیل داختر په شپه یــور ی

او تو نیا دخپل یــو دوست سون
تینسکی کورته د مانښام د ډوډ ی
خوړلوله‌پاره‌وبلل‌شول‌میلمستیاته
دتگ نه پخوادتونیامورته دخدای
په اماني کولوله‌پاره وزغلــل . د
تو نیا مورچه له ځومودو راهیسی
سخته ناروغــه شوی ؤ اوخــپل
حال یې خراب لیده دوی دواړ په
غیږ کښې ونیولی سترگی یې له
اوښکو ځخه راډکی شولی اودوی
ته یې ویل : که زه‌مړه‌شوم تاسو
دواړه یوه له‌بل سره واده وکړی
له هغه وخته‌وروسته‌دیوری‌اوتونیا
مینی بلــه بڼه غو ر ه کړ ی دوی
دواړو دنځیدو په وخت یــو وبل
ته خپله خپله مینه وښودله اوپه
دغه وخت کښې یې ځانونه دنړی
له‌ډیرو نیکمرغو خلکو ځــخه‌بلل.
ناځاپه دگولی ږغ دوی دخــو ږ و
تصوراتو له دنیا ځخه وایستل .
حقیقت ځرگند شو . لارانومی‌یوه
ښځه چــه یوه ورځ دسن تیتسکی
د یو میلمه کوماوسکی معشوقه
وه دپیسواخستلودپاره دغه‌کورته
راغلې وه خوځرنگه چه‌کوما اوسکی
هغې ته پیسی ورنــه کـړ ی
نو دی سمدلاسه وربانندی ډزوکړ
خوگولی له ده ځخه چپه شوه او
په یو بل چا ولگیدل .

داکتر ژیواگوته پــه دی و خت
کښې چه دی غــواړي دټپي شوی
سړی‌سره مرسته‌وکړی دسی خبر
راځي چه دتونیادمورحال خطرناك
شوی دی .

ډاکټرژیواګو په ستومانه جسم اوغم ځپلی روح سره مسکوتــه لاړ حالت ئی‌له پخوانه ډیر خراب شوی ؤ پیغله مارینا دهــغه کور دروازه وانــه چــه دی پــکــښې اوسیدو دده په ذوق او قریحــه اواشعارو مینه شوه اوبالاخره‌دده ښځه شوه اوله دغه وصلت څخه دوې نجونی پیــداشوی اوس‌دده کارپای ته رسیدلی ؤ او دمارینا عشق نشوکولای‌چه دی‌اوژوندیی سره پخلاکړی .

دزړه په نــاروغی اخته شوی ؤ دغی ناروغی دده ژوند تریخ کړ . خوموده وروستــه لــه پــاریس څخه ددی لومــړنی ښځی ورتــه یولیك راواستاوه‌او په هغه‌کښی ئی لیکلی ؤچه‌زوی یی اوس لوی شوی دی ښوونځی ئی پای تــه رسولی او لوریی په ښوونــځی کښی شامله شوی ده . ژیواګو چه بی هد فه ژوندئی درلود په دی وروستیو وختوکښی بیاچمتو شو چه‌په‌طبابت لاس پوری کړی خوپه هغه ورځ چه ده دلومړی‌ځل دپاره غوښتل‌چه روغتون‌ته‌لاړشی دزړه ددریدو په اثر مړشو .

# ارام‌دن

## دشولوخف‌اثر

آرام دن شوروی جمهــور یــتــو د اتحاد د هیواد دادبیاتو ډیر عالی مظهر دی چه‌لوی شوروی‌لیکوال میخائیل شو لو خوف لیکلی دی لیکوال ددغه اثر دتد وین اوتالیف له پاره څورلس کاله کړ اوزغملی دی .

میخائیل الکساندرو ویچ شولوخوف په ۱۹۰۵ کال کښی داستوف په یوه‌سیمه‌کروژیلین کښې زیږیدلی دی لازلمیؤ چه‌په سیاسی چارو کښی یی ګډون وکړ اوبیا یی د «آرام دن» دکتاب په لیکلوسره چه‌له ۱۹۲۸ تر۱۹۴۰ کال پــوری یی دوام وکړ زیات شهرت یی حاصل کړ .په خپله دی دخپل ژوند په باره کښی داسی لیکی.

زه په ۱۹۰۵ کال د«دونتز» په کروژ یلین کښی په یوه کلیوالی جونګړه کښی زیږیدلی یم پلارمی داسی سړی ؤ چه‌هر کار به‌پــه مخه ورغی هغه به یی کاوه دی دریا زان دایالت څخه راپیدا شو اودژوند تر آخر ووختو(۱۹۲۵) پوری یی هم دبل کسب لټه کوله کله‌کله به یی څاروی پیر ودل اوپلورل ـکله به‌بیا په کرنه‌بوخت شو خوکاله سواګر هــمؤ.مورمی نیمه قزاقه اونیمه کلیوالی ښځه وه ـکله چه‌زه خــپل پــلا ر له ښو ونځی څخه خارج کــړم دی ماته لوستل او لیکل راوښودل. په ۱۹۱۲ کال مونږ یوه ډوټه‌مځکه لرله چه ما او مور می پکښی‌ژوند کاوه ـ په بیلوبیلوښوونځیو کښی په زده کړه بوخت شوم په ۱۹۱۸ کال کښی هغه وخت چه‌داخلــی جګړی شروع شوی زه‌د(دن) پــه ساحل کښی وم اوپه ۱۹۲۰کــال کښی ددن دغاړ ی په مځکو کښی می کارکاوه او ډیر ځله «دسپین ګارد» په غلو پسی لاړم آخر هغه څــه را پیښ شول‌چه‌غوښتل می

ژر دکور پخوا روانیږی خو هغه
وخت دی ورسیږی چه انا ایوانوا
مړه شوی وه .
له بلی خوا کوما روسکی چه
سالم پاتی شودخپلی ابرودساتلو
له پاره لارله هغه کور څخه وباسی
اویوه کوټه ورته نیسی یو ښه
سړی گوکوکر یفف چه په خوائی
هم له لاراسره محبت درلود دی ته
دزرو روبلو په ور کولو سره داله
دغی مخمصې څخه ساتی لاراله
یوسړی سره چه پاشا نومیږی
او پخوائی هم ورسره مینه لرله
ازدواج کوی اودواړه دیوریاتین ښار
ځی څو موده وروسته ئی زوی
پیدا کیږی اولارخپل میړه ته دخپلی
پدی ورځی قصه کوی داکار سبب
کیږی چه ددوی ژوند سره بیل
شی . پاشادیو داوطلب په شکل
جگړی ته ځی څو موده خو خپلی
ښځی ته لیك استوی خوبیا دغه
سلسله قطع کوی . لارا خپل زوی
په خپل یوشاگرد سپاری او داهم
خپله په میړه پسی ئی رهی کیږی .
دانا ایوانو دمرگ نه و وروسته
داکتر ژۋیواگوله تونیانیره ازدواج
کوی دغه واده ثمریو هلك دی چه د
لومړی بین المللی جگړی په دوهم
منی کښی پیدا کیږی ډاکترژیواگو
داردو په صحی چار و کښی
استخدامیږی او دجگړی جبهی ته
استول کیږی . تلفات ډیر زیات
دی او ډاکتر ژیوا گودټپیانو له چیغو
او کر کو څخه سخت په گراوشوی

دی . ددغه قتل عام په معنی
نه پوهیږی نه ده ورته څرگنده چه
دزلمیانو دغه وژل توټی کول او په
مځکه اچول یی دڅه دپاره دی.
بالاخره په ده باندی هم دوظیفی
دسرته رسولو په حال کښی گولی
لگیږی . دی روغتون ته وړل کیږی
دی هلته بیاد لاراسره دپرستاری
لباس ئی اغوستی دی مخامخ کیږی
لارا په ډیره مینه اوزړه سواندی
د ده خدمت کوی. اوس دوی دواړه
ورو ورو احساسوی چه زړونه یی
یو به بل تړل شوی دی .

دمسکو حالت ورځ په ورځ خطرناك
کیږی . لارا اوژیواگو دواړه په
هغه ښار کښی دوستان لرل نو
هلته ورځی . ډاکترژیواگو دمسکو
په یو روغتون کښی په طبابت
بوخت کیږی خدمتونه یی د دولت
دتوجه وړ گرځی اوژوند یی په
هوسایی او خوښی تیریږی .
ژمی دی چه ډاکترژیواگو دتیفوس
په ناروغی اخته کیږی دنا روغی له
اوز دی مودی نه وروسته کله چه
دی له بستری څخه پاڅیږی حواس
یی ښه کارنه ورکوی . اوس دده
دپاره دمسکو ژوند دزغملو وړ نه دی
نو ځکه تصمیم نیسی چه دپلار
ښځی او کورنی په ملگرتیا په تونیا
کښی دخپل نیکه املاکو نه چه داورال
دغرو په لمنه کښی دی ورشی .
په ډیر زحمت ځان او نوروته
تکټ برابروی او ټول په اورگاډی

کښي روانیږي اورګاډي خوورځي شپې په‌لار کښي پاتي کیږي. تول‌ریدځا یو نه معطلیږي او دروسیې ژمي ظالم او جفا کاره کیږي.
په تولـه لار کښي د انقلاب د شروع اثر ـ فقر ـ لوږه او دکلیوورانۍ ویجاړۍ ګوري داخلي جګړې کمي اوزیاتي رواني دي.
کلي ته درسیدو نه وروسته لـه ډاکتر ژیواګو سره دده دنیکه داملاکو واکمن ښه و ضعیت نه کوي او دده او دهغه کورنۍ د نورو غړو داستوګنې دپاره داسي کوټه ورکوي چه نوکران او خدمتګاران په کښي ژوند کوي.
ډاکتر ژیواګو له خپل اصلي کسب څخه استفاده نه کوي او دخپلې کورنۍ د معیشت تا مینولو له‌پاره دیوي تو تي بزګران پو هیږي چه‌دی غاړه اخلي بزګران‌پوهیږي چه‌دی یو حاذق طبیب دی او ټل ده ته مراجعه کوي‌یوه‌ورځ‌داکتر ژیواګو دیو ربا تین د ښار یوي لویي کتابخانې ته ورځي اتفاقا یې ستر ګي له لاراسره مخامخ کیږي ـ دانا سته وه او مطالعهٔ ئې‌کوله ده دډیرې خو شحالي نه خپل سراوپښې نه پیژندل بیا د دوی ترمنځ عهد اوپیمان نوي شو. ترډي وروسته به ډاکتر ژیواګو په‌مختلفو پلمو ښارته روانیده اودلارا په غیږ کښي به ئې ځان اوجهان هیراوه.
یوه ورځ دی دلاراکورته روان ؤ چه دځو تنو پارتیزانو لا س ته ور غی ددو ی ډا کتر وژل شوی ؤ ژیواګواتلس میاشتي دپارتیزانو په لاس کښي اسیرؤ.

د دوی قوماندان دهغه چا زوی ؤ چه د اورال د مځکو واك ئې په لاس کښي وو نو ځکه‌ئی له‌ډاکتر ژیواګوسره ښه چال چلن‌درلود. دغه سړی اولیبریوس نومیده بالاخره ډاکتر ژیواګو دپارتیزانو له اردو ځخه‌وتښتیده او دیو یاتین ښار ته لاړ. بیره ئې رسیدلی وه هر څه ئې کثیف او چټل شوی ؤ په دې حال‌کښي دی دلاراکورته ورغی اوهلته له ښو ولوید خو بیا دلاراپرستاری دی‌بېړه وردراوه.
داکتوبر انقلاب سبب شو چه دډاکترژیواګوښځه او اولاد له مسکو ځخه خارج ته وتښتي اوپه پاریس کښي میشته شي ـ ددغي ښځي خبرئې ده ته په یولیك کښي ورکړ یوه شپه‌کوما روسکی هم دتیښتي خیال درلود اوله‌ځان سره دلاراد بیولو له پاره راغی ښځي داخبره نه منله اخر ډاکترژیواګو راضي کړله چه له کوماروسکي سره وتښتي او ځان ته نجات ورکړي لار اهم لاړه او داکتر ژیوا ګو یوازي‌پاتي‌شو. اوس دده دپاره هر څه پای ته رسیدلی و وهرشي لاس ورڅخه اخیستي وو اودي یې یوازي پرې ایښی.

له ۱۹۲۳کال نه مي‌په لیکلو پیل کړی دی له همغه کال نه‌زما لیکنی یې د«کامسامول» په ورځپانه‌کښی خپرو لی . لومړ نی کتاب مي په ۱۹۲۶ کال کښي چا پ شو ی دی .

دشوری ستر لیکوال ادبی ژو ند په همدغسی سادګی شروع شو- ترقي یې ډیر ه ګړندی وه دده له لیکوالی ځخه دری کاله نـه وو تیر شوی چه دخپل کم نظیر ه اثر( ارام‌دن) په‌لیکلویی‌پیل و کړ په ۱۹۲٦ کال کښي یی لومړ ی جلد خپور کړاودهغه‌کتاب‌په‌خپریدو سره شولو خف دشوروی په‌لویو لیکوالو کښی راغی .

له‌دی نه‌پخوا هم‌ددغه‌لیکوال ځینی آثار خپاره شوی‌ؤدده یوبل اثر د (ژوند ی شوی ؤدده یوبل اثر د دی‌چه په ۱۹۳۲ کال کښی‌یی‌لیکلی دی خو تر اوسه پوری پای ته نه دی رسبدلی. شولوخف‌دبین‌المللی دوهمی ستری جګړی نه وروسته یوبل کتاب «څوك چه دوطن‌له پاره جنګیدلی دی » لیکلی خودغه کتاب هم نا تما م‌پاتي شو ی‌دی .

**ارام‌دن:** کم‌نظیره لویه حما سه (ارام دن ) په لسو جلدو کښی خپره شوی او دنړی په زیا تـو ژوند یو ژبو ترجمه شوی ده دا کتاب دومره مفصل‌اوجالب‌اوعمیق دی چه لنډ ول یی په دی‌ځای‌کښی ډیر ګران کاردی .

داکتاب چه څه‌نا څه دتو لستو ی دحماسی‌لوی کتاب‌جنګ اوسولی ځخه تقلید شوی دی دلومـړ ی

بین المللی جګړی نه دمخه اوددغی جګړی په‌و خت کښی دقزاقانو د ژوندانه حا لت ښیی .ددغه روسی په وخت کښی دقزاقانو دژوندا نه

شاهکار په تدو ین کښی څو رلس کلو نه تیر شوی دی‌په‌دی تر تیب چـه لو مړ ی کتاب یـی پـه دریو جلدو کښی۱۹۲۳ کال‌کښی دوهم کتاب یی په دریو جلـد و کښی په ۱۹۲۹ کال دریم کتاب‌یی په دوو جلد وکښی پـه ۱۹۳۳ کال‌کښی‌اوځلورم کتاب‌یی په‌دووجلدو کښی په ۱۹٤۰ کښی خپو ر شوی دی .

دغه داستان هم دمعنی په لحا ظ او هم دخلکو دواقعی‌ژوندانه تشریح کولو له نظر ه په‌روسی ادبیا تو کښی‌غوره مقام پیداکړی .په‌کتا ب کښی دکو لاکانو اوسپین‌ګاردسره دقزاقانو جګړی په استادی سر ه ذکر شوی چه‌په لوستلویی سړی دشوروی ملتو جنبش‌په‌مسیر کښی ځان شامل ګڼی اوله دوی سر ه

په غم اوښـادی‌کښی‌ځان شر یك بولی . لیکن باید وپوهیږی چـه کتاب یوازی دقزا قانو حالا ت نه ښیی بلکه تردی هم غټی مسالی پکښی طر ح شو ی او هغو ته ځواب ویلی‌شوی‌دی.دداستان‌اصلی قهرمان یو قزاقی سړی «ګریګوری مله خف» دی چه غم لړلی خوعبرت

ناك ژوند لری . شولو خف ددغه

سړی په سر گذشت کښې داسې خوك نشته چه له ملت څخه یې جداشوی نو ځکه دتباهی په لار روان شوی دی. گریگوری مله خف بو تکړه با اراده حساس سړی دی اودپاك زړه څښتن دی خواجتما ع ښه نشي درك کولای نو ځکه دخپل هیوادد پاره مزاحم سړی ور څخه جوړیږی په تول داستا ن کښې لوستو نکی له هغه سر ه داسې مهربانی پیداکوی چه هغه دده په اغز شونو کښې هم کمې نه لر ی لوستونکی پوهیږی چه دگریگوری ناوړه کارو نه دده داشتباه په اثر کیږی نه دمجرمانه حس له مخې . دی په دغه لار کښې دومر ه پهمخ درومی چه دملت ددښمنانو پهصف کښیدریږی اودخپلو ورونو دوینو په تویو لو لاس پوری کوی خو په اخر کښې دی هم دنورو گنا هگار وپه څیر دخلکر دقوت په مقابل کښې محوه کیږی . کله چه د غه داستان خپور شو پهاو ل کښېیې

هم هرکلی وشو او هم ور باندی انتقاد و نه وشولدغوانتقاد کوونکو به ویل چه شولو خف باید پهپای کښې دخپل داستان قهرمان شي لاری ته برابر کړی وی او هغهیې باید نا امیـده۔ گناهـکار نـه و ی پر ی ایښې خو واقعی لیکوالو او نقـاد انـو ژ ر د غـو بـی ځای ــه انتقا دونو ته ځواب ووایه ا و «ارام دن» خپل لوړ مقام وساتلی شو. یوه شوروی دقیق پوها ند دمخالفینو په ځواب کښې دا سې ولیکل :

ځینی خلك دافکر کوی چه باید گریگوری په پای کښې ښښل شوی وی او ښه سمه لار سیخ شوی وی خو که چیری لیکوال دا اشتباه کړی وی دخپل لوی داستان اهمیت بهیې کم کړی وای .

او (تم ) بهیې کم زوری شو ی وای سر بیره پردی هغه به یې دژوند انه له حقیقته لر ی کړ ی وای شو لوخف ښه کار کړ ی دی اودخپل داستان قهرمان یې دیو هنرمند په بیرحمی سره تر پایه په یوه لار بیو لی دی ځکه کهچیری ده داسې نه وای کړی نو لهداستان څخه بهیو معمو لی او تبلیغا تی اثر جوړ شوی وای اودقهر ما ن عظمت تهچهدملت په مخالف شخص معرفی شوی دی صدمه پیښیدله او بیا به گریگو ری داسې څو ك نه ؤ چه خلکو تهیې ژوند دعبر ت نه ډك وی له گریگوری څخه خیانت لیدلی شوی ؤ نودده وجود ته اړتیا نه ؤ ه چه اصلاح شوی و ی . هغه چاته چه لهخپل ملت سر ه ښه رویه نه کوی بایدجزاو رکړی شي. که چیری دیو داسې سړ ی خاتمه چه هغه دوطن پهضد جگړه کوی په تصنعی ډو گــه ښه شي اوکه دغه ښه کیدل دلوستو نکو د اعصابو دتسکین له پاره هم و ی نو بیا دلویو خیانتو نو ا همیت کمیږی .

ګریګوري د ځینو دتصور په خلاف د قرآ قانو دمعیني طبقي نماینده نه دي چه دهغي طبقي سرنوشت په ده تعلق ولري او ټول په لرګي سره رهنمایي کړي. دي په داسي ټولنه کښي یو منفرد انسان دی چه دهغوی فکر کولای شي. دغه متزلزل انسان په دولارو کښي حیرانیږي او تصمیم نشي نیولای نوځکه خپل سزا مومي.

شولوخف دګریګوري په لباس کښي یو ټاکلي اجتماعي ټولګی نه ښیي بلکه هغه دداسي سړي سرنوشت بیانوي چه دوطن د مور له غیږي څخه شړل شوی او په هلاکت اوورك کید و محکوم شوي دی.

باید ووهیږو چه دګریګوري بنه دخپلې زماني داجتماعي اوضاعو دپرا خي او ژورې ساحي له مخي ښودل شوي ده ـ اووا قعات دمثبته مدار کو او اسناد و لهمخي تشریح شوي دي نوځکه ارام دن مونږ دانقلاب نه وروسته ددا خلي جګړ و تاریخچه هم بللای شو.

# دن کیشوت
## دسروانتس اثر

دن کیشوت هغه ژوندی شاهکار دی چه تراوسه یو کتاب هم دهغه په اندازه دبیلو بیلو ملتو نو نه دی خوښ شوی او هیڅ کتاب د هغه په شان پهداسي ټوګه نه دی بریالی شوی چه دلیکوال شهرت او عظمت دخپل شهرت تحت الشعاع راولي. ډیر کتابونه شته چه یوازي په یوملت اویا یو قوم اړه لري اودیو هیواد له سرحد نه ور هغه خوا نظر نه کوی ډیر دغه راز نور کتابونه هم شته چه په نورو هیواد و کښي مطالعه کیږي خویوازي منورین کسانو اوممتازي طبقي یې خوښوي خودن کیشوت ټول جغرافیایي ـ نژادي اجتماعي او طبقاتي بند یزونه او حصارونه مات کړي او خپل نوم یې له بشر اونړۍ سره یوځای کړی دی داچه ځیني خلك دغه کتاب دعظمت بنه مور بولي د کتاب دعظمت بنه دلیل دی داکتاب داولسمي پیړی نه تراوسه پوري له ډیر شو څخه پهزیاتو ژبو ترجمه شوی دی یوازي په شوروی اتحاد کښي له ۱۹۱۷ کاله څخه تراوسه پوري (۵۰) ځله چاپ شوی اوهرځل ۹۰۰۰ ر ۹ جلده ونلی دی ترکومه ځایه چه ورباندي خبریو په فرانسه کښي هم له (۵۶) ځلو څخه ډیر چاپ شوی دی چه هلته یا بشپړ ترجمه شوی او یائی لنډیز خپور شوی دی اویادبالت اوډرامو په شکل کښي ښودل شوی دی. که څههم په څو وروستیو قرنو کښي ډیر مهم تحولات اوتغییرات پیښ شوي دي او دغو تحولاتو پهادبي ذوقونو کښي هم مهم بدلونونه راوستلي دي سره ددي هم داکتاب اوس هم د خلکو خوښیږي او ډیر لوستونکي لري

او دشاهکارۍ له مقام څخه نه دی را غورځیدلی ـ باید داخبره پته نه کړو چه دن کیشوت دتکنیك او اصولو له مخې غټ اثر نه دی او لیکوال یې هم له سهوی او خطا څخه پاك سړی نشو بللای سره ددې تړوله خبرودن کیشوت دنړۍ ډیر ستر او لوړ داستان دی . دکتاب په باره کښې یونقاد داسې نظریه ښکاره کړې ده .

«ځینې هنرې آثارو دومره کامل او بشپړ وی چه له بشری حدودو څخه وځی اودانسان له خلاقه قدرت څخه ډیرجګ کیږی. خودن کیشوت دومره بشری دی چه له کمال او بشپړتوب څخه لرې کیږی.» یو بل لوی لویدیځ لیکوال په پوره صراحت لیکي «که څوك ویوهیږی چه دن کیشوت مطالعه کړې نودی به دنړۍ دټولو رومانونو دمطالعې کولو څخه بې نیازه شی» .

دکتاب لیکوال سیګل دوسروانتس ساودو د(١٥٤٧ ـ او ١٦١٦ کالو ترمنځ داسپانیې په یو ښارالکالا کښې زیږیدلی دی. پلار یې یو سیار طبیب وچه دیوی نمړۍ دوډۍ پیدا کولوله پاره به ښار په ښار ګرځیده ماشوم سیګل هم به ډیرو دغومسافرتو کښې ورسره تللی دی .دی ښوونځی ته لاړ نشو او دماکسیم ګورکی په څیر یې دټولنی نه پرته پوهنتون ونه لید کله چه دی زلمی شو نویو تکړه او جګړن سړی ورڅخه جوړ شو او له سیراو سفر سره یې مینه زیاته شو .

په ۲۳ کلنی کښې ایتالیې ته لاړ او بیرته چه له ایتالیې نه راغی په نظامی خدمت کښې شامل شو په ۲۵ کلنی(١٥٧١) یې په یوه بحری جګړه کښې ګډون وکړ چه په دغه جګړه کښې ټپی هم شو. دوه کاله وروسته دبحری کشافانو په یوه ډله کښې شامل شو ـ خو موده یې داطریش دل ژوان ترحکم لاندې خدمت وکړ .خو په(١٥٧٥) کال کښې اسپانیې ته دبیرته تګ په وخت کښې دعربو له خوا اسیر او په الجزیره کښې بندی شو او بیا مریی (غلام) شو سروانتس د دن کیشوت په کتاب کښې خپل اسارت او مریی توب ته اشاره کړې ده .

(لومړی جلد ـ داسیر قصه) مور او پلار ئې یې یوه اندازه زر دده داخستلو دپاره ولیږل مګر هغه کافی نه ؤ خوشی نشو .دیو کال غلامی نه وروسته وتښتیده خو په دغه تیښته بریالی نشو او بیا ونیول شو زیات زحمتونه او ربړونه وربانده ورغلل بیا هم وتښتید اوبیا ونیول شو بیائی دی دالجزیری والی حسن پاشاته واستاوه او هغه ئې دڅښتن څخه واخیست خو موده وروسته اسیر سروانتس د اسپانیې خارجه وزارت ته لیك واستاوه چه هغه

ته ئی دالـجزیری د تسخیـرولو
نقشه په خپل لیك کښې طـرح
کړی وه .

د اسپانیی پاچا دغه نقشه ونـه
منله بالاخره ئی دپلار او مور پـه
کوښښ اوپه الجزیره کښې دخو
تنو مسیحی سوال‌گرو په‌هڅه دده
له غاړی دغلامۍ کړی ایسته‌شوه
اودی پرتگال ته‌لاړ .

په ۱۵۸۱ کال کښې ده ته یـو
ماموریت وسپارل شو چه «اوران»
ته لاړ شي ددغه ماموریت دسرته
رسولو نه وروسته ئی د«ازورس»
په‌جگړه کښې گډون‌وکړ .څوموده
وروسته ئی له‌یوی نـجلی سره
واده وکړه خو دغـه ازدواج دده
بی تـر تیبه او ستومانه ژوند
آرام نشو کـړی . پـه همـدغه
وخت کښی سر وانتس قصد وکړ
چه‌خپل قلم وازمویی اود لیکوای
له لاری گو زار ه وکړ ی تر ۱۵۸۷
کال پوری یی ډرامی و لیکلی چه
دغه ډرامی به ده دستا ینی و ړ
بللی خو په حقیقت کښی یی دومره
ارزښت نه درلود . (عجیبه خبره داده
چه سرو انتس په خپل عسکر ی
استعداد هم ویاړ کاوه حتـی پـه
عسکری فنونو کښی‌یی‌خپل لیاقت
له لیکـوالی شـخه هـم ز یا ت
باله ) .ده شعر هم وایه لکه د
ده دمعا صر اسپا نوی مشهو ر
ډرامه لیکو ونکی « لوپ‌دودگا »
په قول « په ټوله اسپانیه کښی
دږانتس په اندازه بل شاعر دومره
بده قریحه نه لرله ».په ۱۹۸٤ کال
کښی ده یو رومان (گالا تیا )
ولیکه چه ده ته‌یی شهرت و ر په
برخه کړ دده ددغه کتاب په باره
کښی لیکلی شوی دی .

«که‌څه هم‌درسانس دوخت‌د نشر
فصاحت اوروانی لری خو دا سی
تصنع په‌کښی شته چه‌دسروانتس
غنی‌اورو ښانه ریالیزم ترستو نی
نیسی » ( بریتا نیکا انسیکلو پیډیا)

په خپله سر وانتس هم دغه ټکی
ته ملتفت ؤ اوویل به‌یی«یوشی په
هغه کښی شته خو کومی نتیجی‌ته‌نه
رسیږی » سر ولانتس پوهید لی
و چه دقلم په برکت ډوډی نشی
پیدا کړی (۱۵۸۷) کومه وظیفه‌چه
ته لاړ چه هلته ځان ته کوم کار
پیدا کړی (۱۹۸۷) کومه وظیفه چه
ده ته وسپارله شوه ورته په زړ ه
پوری نه وه ـڅوموده وروسته یی
پاچاته عریضه ولیکه چـه‌دده د
خدمتو نو په تقدیر و لو سر ه
دی په امریکا کښی داسپانیی په
مستعمرا توکښی ورته یوه وظیفه
ورکړی خو پاچایی په ځوا ب‌کښی
ولیکل . ښه به داوی چه هیواد
ته نژدی چیرته ځان ته کا ر پیدا
کړی . په ۱۵۹۰ کښی دده لا س
ډیر تنگ ؤ حتی دجامی اخستلو

له پاره یی پیسی پو رکړی . کله
چه‌په ده تنگه ور ځ راغله مجبو ر
شوچه بیاد ادبیا تو دنیا ته پنا ه
یوسی له یو خپرو نکی سر یی
قرار داد و کړ چه ده تـه بـه
شپږ درامی لیکی او په هره ډرامه

به ور شخه (۵۰) دو کا اخلی خو پ‌ه‌دی شرط چه هره‌ډرامه‌دخپرونکی په تشخیص ډیر ه ښه ډرامه و ی. خوده له دغه قرار داد شخه هم کته وانخستله او بیر ته «سویل» ته لاړ او دمالیو‌اخستلو‌په‌ماموریت مقرر شو خو په ۱۵۹۷ کال‌کښی دغفلت اود حسا بداری له فن سره دده دنه اشنایی په وجه په ما لیاتو کښی کسر راغی نو ځکه دی له دغی وظیفی شخه بر طر ف شو اوله پخوانه زیات دغر بت او فقر په دریاب کښی ډوب شو. تراوسه پوری په یقینی توګه نه ده څر ګند شوی چه سر وانتس له خد مت شخه له جلا کید ونه ورو سته‌دری کلو نه شنګه تیر کړل دیو ه قو ل له مخی بند ی شو او تر ۱۶۰۰ کاله پوری په بندی خانه کښی بروت ؤ نوځکه ده باید دخپل نه هیرید ونکی اونه محو کیدونکی شا هکار «دن کیشو ت ) لومړ ی برخه په زند ان کښی لیکلی وی .

ددن کیشوت لومړنی برخه په ۱۶۰۵ کال کښی چاپ شو ی اوپه همغه وخت کښی یی په اسپانیا او پر تګال شه هر کلی هر کلی شوی دی . دبریتا نیا په دایرت المعار ف کښی لیکل شوی دی چه «ددن‌کیشوت» ژرمجبوریت ښایی زیاتره دپیښو دتنو ع او دکمیدی مو ضو عاتو دزیا توا لی له ا مله اویا ښایی دهغو ځیني و له‌کبله وی چه هغه وخت دممتازو خلکو به مخ و هلی شو ی دی .

دده پت بی رغه غم‌ـعظیم انسانیت بی او په ژوندانه باندی شوی نافذ انتقاد یی کتاب دتصور نه هم‌زیات جالب کړی او دتوجه وړ ګر ځولی وی . »

ددن کیشوت دوهمه بر خه لس کاله وروسته یعنی په ۱۶۱۵ کال کښی خپره شوه ( تردی دمخه پربل لیکوال یادشخصی استفا دی په قصد اویاله دی کبله چه د ده په خیال سرو انتس او سپین‌ږیری شوی دی او ددوهمی بر خی لیکلو توان نه لری یو کتاب چه ددن کیشوت لومړی برخه‌یی‌پشپړ کوله لیکلی او خپور کړی ؤ په برخه کښی دسر وانتس فکاهیا ت او کمیدی ډیری مؤثری د ی‌دده دلیکلو سبك بشپړ شوی اودد غی برخی ددوهمی درجی شخصیتو نه دکتاب دلومړی برخی دلومړ ی درجه شخصیتو نوځخه‌ښه تصویر شوی دی دسر وانتس شهر ت نهایی حد ته ور رسید خود غه شهرت ده ته پیسی ور نکړی او همدغسی زوړ او فقیر سپا هی پاتی شو .

## دن کیشو ت

ددن کیشوت کتاب دپهلوا نی د هغه نظام په ابتدا لا تو ا و بی هود ګیو کومید ی انتقاد دی چه دسر وانتس په عصر کښی مخ‌په زوال روان ؤ. په هغه و خت

کښې اسپانیا یوه لویه اوشته منه امپرا توری وه . حاکمه طبقه‌له اشرافو او نجیب زادګا نو څخــه جوړه شوې‌ؤ .
سودا ګر وهم په مستعمرا تو کښې دخپلو تجارتی معا ملوله‌مخې ډیرشته پید اکړی و او په د غه وسیله یې نفو ذ او اقتدا ور ځ په ورځ زبا تیده دتا جرا نو ثرو ت دټولنې نو ځکه نجیب زاد ګا نو او شوالیه ګانو چه یوې ډلې یې دمت په زور اوبلې یې په اصل اونسب تکیه لرله ورو ورو ټولنه دځان له پاره تنګه کړې و لید له نوې هنرمند سر وا نتس له د غو اجتماعی تحو لاتو څخه ستر ګی نشوې پټو لای اود دغو دووطبقو په تیره دشوالیه ګا نو دپه سرسر وهلو دپاره یې دا کتاب و لیکه چه په پیړیو پیړیو یې خلك خند ولی او خند وی یې .ده هم د«بتهووون» په څیر د غمونو تر دراندہ پیــتې لاندې دښاد یو او خوشحا لیو نغمې غږو لې دی او له غم څخه یــې ښادۍ خلق کړی اوهمدغه‌دده‌دهنر را ز دی .
دن کیشو ت یوخان زاده د ی چه دشوالیه ګانو دانحطاط په‌وخت کښې غواړی چه دپهلوانی اوعیاری له ټول شوی تغر څخه علم جو ړ کړی دده مقصد دا دی چه خپلو هغو اوهامو او تخیلاتو ته چه د دعیاری دقصو دپرله پسی لوستلو په اثر یې په ذهن کښې ځای‌نیولی دی دواقعیت جامه ور وا غوند ی سره ددې‌چه له‌ځان‌څخه دمچ‌شړلو زرونه لری د جګړې جامی اغوندی سیر په لاس کښې اخلی او توره ترملا تړی په یواس که رشتیــا ووایم په یو یا بوباندی چه له څخه هم کمزور ی دی سپرېږ ی او د قهرمانی دپیښو او دپهلوانی‌دمجرا ګانو په لټو ن نیغ‌ددښت اوبیابان لاره نیسی خود اوه دژوند ا نه واقعیا نو ترمنځ فرق ډیر د ی .
بیاهم دن کیشوت بی هد فه نه دی‌روان عالی انسانی آرزو ګا نی او اند یښنی لری خو څرنګه چه واقعیتو نه ورسره ملګر ی نه کوی او دژوندانه وا قعیتو نه دهغه له واهی اندیښنتو سره جوړه او روغه نه کوی نوله واقعیت سره جګړې ګانو په لټون نیغ ددښت‌اوبیابان دده نن په تن جګړه دژوندا نه له عینی اوواقعی مظاهرو سر ه دده دخپړیدلګولوډیره‌لویه‌اوژوندی نمونه دی .

خیال بافی دن کیشوت ور ځینې غذاده . یو ویجاړ شوی کار وا ن سرای مستحکمه کــلابی ازا ره لارویاز بد کــاره جــادو ګــرا ن خدمتګار ی ښځی شهزاد ګــۍ اوبادی ژرندی افسا نوی دیوا ن ګڼی کله چه دکپ بوی یی پو زی ته ورسیږی دی یی مزه ناك کباب شوی کبان بولی او چه دمیز و

رمباری واوری نوا واز یی غوږونه

داسا نو دشنمهارد بچه خا نی دذم او ډ وم پـه آ هنـگـك کـښی ورځي .

دواقعيا تو له درك ځخه دد ه غاړه غړول يا نا توانی دد ی باعث کيږی چه دن کيشوت دسنجش او تشخيص قدرت له لاسه ورکړی او دی له داسی قواوو او عوا ملو سره جګړه وکړی چه زو ريی لـه ده ځخه ډير زيات دی او بياسختی ماتی وکړی خودغه ماتی اورسوايی دی دخپلی کمزوری ځخه نه ګڼی بلکه وايی چه دا خوله نوروعواملو ځخه راپيدا شوی دی دکمزو ری په ډير بد حالت کښی خپل ز ړه په دی خبره قوی کوی «څر نګه چه ماد پهلوانی له قوا عدو اوقوانينو ځخه غاړه غړو لی ده نودجګړی ربالنوع زه تنبيه کړ م. »

دن کيشوت له واقعيت سر ه په خپل لجو جانه ضد يت کښی د ی مرحلی ته رسيږی چه دژوندا نه ترخي ورځني پيښی هم دی په سمه لارنشی بيو لای دی ورځ په ورځ کبر جن او مغروره کيږ ی او په هره شيبه کښی دی دبدبختی کندی ته ور لويږی اوپه هرو خت کښی چه دی سختی صدمی ووينی لا زياتی دغيرت سندری وايی او ځان په بادو پړ سوی دده همد غه احمقانه سنند ری دی چه لوستونکی خندوی دډيرو خوپه خندا کښی پښتورګی خو ږوی .

خو که ددن کيشوت دخند او ړ شخصيت له بله نظر هم و کتل شی نودی يو شريف نو ع دوست سړی دی او دښه زړه خا وند دی چه دبشر دوستی هد فونه لر ی دی غواړی چه ظلم له مظلوما نو ځخه لری کړی اودمصيبت خـپلو ملګری وی نو بيا ځه خبره ده چه دغسی يوداحترام و ړشخصيت مو نـږ خندوی . ددغی نکتی راز په د ی کښی دی چه دن کيشوت په ځا ی ددی چه دمظالمو دورك کو لـه پاره دحل عملی واقعی لارپيدا کړی اوله اجتماعی مساعد و مقتضيا تو ا و ا مکـا نا تو ځخه ګـتـه واخلی کوشش کوی چه دوهم ا و خيال په دنيا کښی دخپلی ناروغی مخيلی په کمك ددغه مشکل دحل له پاره مساعد مقتضيات اوامکانات را پيدا کړی . اوپه ځای ددی چه دخپلو لو ړو هيلو دسرته رسو لو له امله له واقعيتو نو ځخه استفاد ه وکړی له هغو سره لجوجانه مبارزه کوی دی هغه چاته ورته دی چه دديوال ترخڼ په خاورو کښې پروت وی.

او دکومك کولو ناری و هی مګر لاره نشی پيژند لای ځان په ديوال وهی دی په وينو کښی خپل ځا ن لیت پيت کوی او کله کله ځان له ديوال ځخه خومتره جګـوی او بيـرته ځان په مځکه وهـی همدا خبـره ده چه مو نږ دبی وزلـو دلا س نيوی له پاره دده عا لی هد ف ستايو اماپه ده اودد ه په کاربا ندی له خندا کو لو ځخه هم ډډه نشو کـولای د روسيی مشهور نقـاد

بلینسکی دغه تکی خومره ښه په
خپل ځـا ی کـښـی ر ا و ړ ی
د ی.
(ددن کیشو ت دخندا وړ شخصیت
دزمانی له ضروریاتو او الزاما تو
سره دده دښو اندیښنو دضد یت
نه امله دی اوددی امله دخند اوړدی
چه دغه فکر دعمل لاره نشی پیدا
کولای ...
هر څوك لږ څه‌دن کیشوت دی چه
دتخیل عجیب قدرت لری زړ ه یی
نجیب او شریف دی حتی قو ی
اراده هم لری عقل او هوښیا ر
اراده هم لری عقل او هوښیا ری
یی هم شته خوده عمل له‌چالا کی
او مها رت څخه بـی بـر خـی
دی .
خوددن کیشو ت وسله وال اونوکر
(سانکو پانز ا) سره دد ی چه‌ساده
او تر لاس لاندی سړی د ی‌دخپل
با دارد خیالو نو ښکاره شو ی‌نه
دی دواقعیاتو سره څه ناڅه ملګر
نوب لری دی ددن کیشو ت په
خـلا ف چه دمر ګ تر سر حد
وهل هم وخوری کوښښ کوی چه
ووایی خو ږ شوی نه دی هر څه
په هغه شان ښیی او احسا سوی
لکه چه په واقعیت کښی شته.په
حقیقت کښی له‌دن کیښوت‌سره‌دسانکو
پانزا ملګر توب ددی له پار ه
دی چه دهغه کمزوری جنبی ښی
وپیژندیی شی .
باید ووسل شی چه ددن کیشوت
اوسانکو پانزاشخصیتونه‌چه‌هرچا
خنګه درك کړی دی هغسی یـی
تعریف هم کړی د ی‌دارو پایوادیب

په دی باره کښی لیـکلی د ی
دن‌کیشو ت دانسانی حما قتو نو
ددن کیشوت په لباس کښی‌مجسم
شوی وینو او زمونږ نا پو هـی
او ناخبری د سا نکو پا نزا پـه
قالب کښـی ځان ښکاره کـوی
نوځکه خندا راځی».
تور ګنیف لیکی: «دځان له پاره
ژوند کول او دخپل ځان پـه‌غم
کښی ګکړ کیدل هغه شی دی چه
دن کیشوت یی شر مناك بـولی
که‌وویلای شو چه ده تل له ځان
څخه د باندی د نو رو دپاره ژوند
کاوه نو ویـلای شو چـه ده تل
له‌ځان څخه د باندی دنورو دپاره
ژوند کاوه ویلای شو چه‌ده‌دخپلو
ورونو اود بشر قواوو سره‌دجګړی
کولو دپاره ژوند کاوه».
انګلیسی شا عر لارد بایـرون
دسر انتس په با ره کښی لیکلی
دی. «دن کیشوت له هر بل‌رومان
څخه غم لړلی دی ځکه غمجن‌رومان
دی چه مونږ خندوی قهر مان یی
د حق او عدالت طرفداریو سړی
دی یوازینی هدف یی له ظالمانو
سره مبارزه وه...» اوسانکوپانزا
هم دومره لکه چه ښکاری ا حمق
او ساده سړی نه‌دی‌لکه‌چه‌ار نبورك
لیکی :«دده زرنګی ځان ته یـوه
خاصه فلسفه لری او له دن‌کیشوت
سره یی وفاداری دانښیی چه‌دپنبه
یی پهلوان هیلی په دغه کلیوال
سړی هم ګرانـی او با ارز ښته
دی».

ځینو لیکلوا لـو او نقا دانـو دن کیشوت یوه خیالی افسانــه لیکلی ده چه د ژوندانه له واقعی جنبو سره د ګهون هیڅ وجه نه لری او له ریا لیزم ځخه لری ده.
خو که داسی وی نو د بالـزاك «اوژی ګرانده» هم دیو خسیس سړی د کاریکا تو ځخه پر ته بل شی نشی کیدلی، بالزاك دد غی مبالغی په مر سته د ګرانده پــه مجسم کو لو سره‌داجتماعی‌طبقاتو ډیر مهم خصو صیات ښودلی‌دی. سروانس هم دغه کار کړی دی‌ده پــه‌دن کیشوت کښــی د عیاری انحطاط اود خانی دماڼی لویدل‌یی دخنداوړ اود غمجنو اړخو سره مجسم کړی دی.دن‌کیشوت‌دهغی دهغی طبقی مظهــردی چــه خپل قدرت او شو کت یی لـه لا سه ور کړی دی خو په د غه ز وا ل باور نشی کولای او یا نه غواړی چه پخپل زوال و پو هیږی همدا سبب دی چه مصیبت ځپلی خان زاده توره تر ملا تـړی پـه آس سپریږی او په غر بت او خو اری کښی هم نو کـر او وسله وا ل ساتی او هری خواته ځی‌اومبارزه کوی.

## دلاکو اثر

« خطرناك روابط »د فرا نسوی ژبی یو منل شوی شا هکار د ی سره ددی چه دغه‌کتاب‌دخپریدو نه وروسته ډیر مو ده د چټی کتابو نه‌جمله کښی ګڼل شوی اوحتی ‌دنوی نسل له پاره زیان من‌بلل شوی دی خو دتحلیل تجز یی‌اود سبك په لحاظ د فرانسی حـتی دنړۍ په ادبیاتو کښی لوړ مقام لری. دکتاب لیکوال دتو پخا نی یو افسرؤ چه ډیره موده یـی بی شهر ته ژوند در لود خـو ددغه کتاب په لیکلو او خپرولـو سره دمشاهیرو په لړ کښی را غی.
دا افســر یـر کـود د ر لود لاکودی.
لامکو پــه ۱۷٤۱ کــال کښــی دامین په ښار کښی زیږ ید لی‌اوپه ۱۸۰۳ کال کښی مړ شوی د ی کله چه دی په «ګره‌تومل» کښی او سیده د فرا نسی یوی اد بی مجلی ته یی خپل اشعار ا ستو ل خو اشعار و یی جذابیت نه‌درلود کله چــه دی د «اکس» ټاپــوتــه ولږدید نود فرا غت پــه ورځــو کښی یـی خپل لـو ی رو ما ن «خطرناك روابط » ولیکه او په‌دغه کار کښی یی له ۱۷۸۰ ځخه تــر ۱۷۸۲ کال پوری زحمت وو یست دغه کتاب یی ډیر ژر کامیاب‌شو.
په ۱۷۸۵ کال کښی د «شالون سور مارن» اکاډمی ته وویل چه دښځو د رو زنی پــه باره کښی ژوری ځیړنی و کړی. لیکن بیاده داکا ډمی غړیو ته په خپل یولیك کښی د «وبان» هجوه‌کړی‌وه‌ددغه ددغه کار په اثر نظامی مقا ما ت ور باندی په قهر شول او دی یی

دپاد گان ټول ښار ته وا ستا وه.
په هغه ښار کښې ده لـه اصلي
شهزاده دوك دورلئان سره چـه
دهغـه ځای ریاست یی پـه غاړه
در لود آشنایی پیدا کړه. په دی
وخت کښې دانقلاب لړلړ با د هم
لګیده او لاکلو په سیاسی چارو
کښې بر خه واخستله اود ژاکـو
بنیانو په ټولنه کښې‌شامل شو.
په ۱۷۹۰ کال کښې یی‌دتوپخانی
تشکیلات نوی کړل او په‌دی‌وسیله
دفرانسې په ار دو کښې د لوړی
درجـې خاوند شو چـه بیا پـه
هندو ستان کښې د فـرا نسوی
مستعمرو د حکمـران پـه حیث
مقرر شو. دی په ۱۷۹۳ کال‌کښې
له دومور یه انقلابی ضد عنصر
سره د لاس لر لو په ګناه ونیول
شو او بنـدی کـړی شو او بیا
خوشی شو تو څو چه د تـوپ
دنوی ګو لی جوړولو په‌باره‌کښې
دخپلی اختراع په باب خیړنـی
وکړی شی.
څو موده ورو سته بیا بندی‌شو
داځل نژدی‌ؤ چـه پـه ګیو تین
ووژل شی خو بیا خدای خبر چه
دڅا په واسطه له دغه بند څخه
خو شی شو.

په ۱۸۰۰ کال کښې بیر ته پـه
عسکری کښې شا مل شو او د
تا رانت له ښار څـخه دد فاع پـه
غرض ایتالیی تـه وا ستول شو
لاکلو په ٦٢ کلنی‌مړ شو .دلاکلو
سیاسی او نظامی‌ژوند یی له‌ادبی
ژوند څخه زیات اهمیت لری خو
دی خپل کتاب (خطرناك روابط )
چه دفرانسې دادب بیا سایکالوژی
برخه ګڼل کیدای شی ترنن‌ورځی
پوری مشهور سا تلی دی.

**خطر ناك روابط :**

دغه کتاب چه یو بل د بیلوبیلو
قهرمانانو دلیکو نو په شکل اود
تاریخ په‌ترتیب سره لیکل شوی
دی د عشق او شهوت یـو لـړ
خطر ناکی تو طیی تشریح کوی.
دکتاب دوه اصلی قهر مانان یوه
بد کاره، محیله او هوښیاره‌ښځه
«مارکینـز د و مـر ی» ده چـه
په ښکار ه پر هیز ګاره ښکا ر ی

اوبل می یو عیاشی فاسدالاخلاقه
سړی «ویکنت د ووالمون » دی .
ویکنت دووالمون ډیرو ښځواونجو نو
ته د دوکی ورکولونه وروسته دیوی
شریفی او پر هیز ګاری ښځی «لاپر
زیدانت دتورول » په هغه‌کښې‌دي.
خو داپه آسانی ځان نه ورکوی
مګر پخوانی معشوقه یی چه له کوم
خپلوان‌سره یوه‌شیطانی کینه‌په زړه
کښې‌ساتی‌ویکنت‌دووالمون‌مجبور وی
چه دهغی بدبختی ښځی لورته‌فریب
ورکړی ــ ویکنت دومره په آسانـو
ښکارونو پسی نه ګرځی سره ددی
هم د خپلی معشوقی د خوشاله‌ساتلو
له پاره د معصومی او بی ګناه‌پیغلی
«سیسیل د وو لانژ » ښکار په‌اسانۍ
په لاس ورځی مار کیزله خپلی دغی

شیطاني نقشې څخه دوه مقصدونه لري چه یو خو دهغې نجلي نه مور څخه چه ددې په کورنی کښې ورسره وه او کینه یې ورسره لرله انتقام واخلي او بل داچه په هغې پیغلې باندې یو زلمي «شوالیه دانسني » مین ؤ خو اتفاقاً مارکیز په دغه سړي باندې مینه وه نو دې په دې وسیله غوښتل چه بدبخته پیغله چه دمینې په ډګر کښې یې رقیبه وه له صحنې څخه وباسي .

ویکنت دووالمون څوموده وروسته بیچاره «لاپر زیدانت» لاس ته وروللې عصمت ته یې صدمه رسوې او بیا ورسره بې وفایي کوي دا له ډیرې غصې څخه ناروغه کیږي اوس دویکنت دووالمون او د مارکیز دومرې ترمنځ مبارزه شروع کیږي ماکیز د پیغلې سیسیل د وولانژ قصه شو الـیه دانسني ته کوي او هغه ویکنت وژني سیسیل یوه معبد ته پناه وړي اعتکاف غوره کوي او شوالیه دانسني مالت ته تښتي مارکیز هم دکوې په اثـر خپله ښکلا لهلاسه ورکوي اوداستان په دغه اخلاقي نتیجه پای ته رسیږي.

داکتاب دومره اخلاقي نه دی لکه هنرې چه دې زلمیانو او پیغلو تهیې لوستل ښه نه دي ګڼل شوي .

# روبینسون کروزوئه

## ددانیل دوفؤ اثر

رو بینسون یو ډیـر ښکلـې او مشهور اثر دی چه د انګلیسي لیکوال دانیل دوفؤ په قلم لیکل شوی دی

دانیل دوفؤ په ١٦٦٠ کال کښې په لندن کښې زیږیدلی دی او په ١٧٣١ کال کښې په مور فیلد کښې مـړ شوی دی پـه داســی کور نی کښې زیږیدلی دی چه عقیدې یې د نورو خلکو له عقایدو څخه بیلتون درلود سره ددې هم دانیل خپل تحصیلات د نوینګتن په مذهبي مدرسه کښـې پای ته ورسول بیایې په تجارت پیل وکړ ایټالیې آلمان اسپانیې اوفرانسې تهیې سفرونه وکړل او په ١٦٨٣ کال کښې بیرته انګلستان ته راغی اویو پلورنځی یې پرانیست بیایې دبیړې چلولو کارته ملاوتړله خو په کښې ناکام شو مجبورشو چه په ١٦٩٢ کال کښې داروپاقاری ته لاړشي. لږ موده بیرته انګلستان ته راغی اودیوی محکمې منشي مقرر شو دغه کار له ١٦٩٥ څخه تر ١٦٩٩ پورې دوام وکړ اوپه دغه موده کښې یې خو مهمې سیاسي رسالې ولیکلې . دوفؤلومړی د (ویك) دحزب طرفدارؤ خو بیـا دلیبرال په ګوند کښې شامل شو اودهغه ګوند د مرام دحقانیت په باره کښې یې مضمونونه خپاره کړل خو بیا په توری ګوند کښې چه بیا محافظه کار ګوند شو شامل شو او له دغه ګوند څخه ددفاع له پاره یې خو رسالې هم ولیکلې او په ١٧٠٢ کال کښې د دولت په ضد درسالو دخپرولو په سبب بندي شو او تر ١٧٠٣ کال پورې په بند کښې پاتې شو په ١٧٠٤ کښېیې دیوې میاشتنې

مجلی (ری ویو) په خپرو لو پیل
وکړاو په هغه کښې یې دلیبرا ل
دګو ند په عقایـد و شخـه
دفاع کـولـه پـه ۱۷۰۶ کـا ل
کښې د ټولـواکمنی پـ خـدمت
کښې شامل شو اودهغـی ټـول
واکمنی له خواپه انګلستان پوری
دایر لند دتړلودمربو طو خبرو
اترو له پاره ما مور کړی شو ده
په ۱۷۰۹ کال کښې «بریـتانیـاد
امپراطوری دهیوادودااتحادتاریخ»
په نامه یو کتاب ولیکه اوپه ۱۷۱۵
کال کښې یی یوبل کتاب «داووم
شارل دجګړو تاریخ » ولیکه.
ددو فؤ زړه ورو ورو له سیاست
شخه سوړ شو اوداد بیا تو نړی
ته یی مخه شو په ۱۷۱۹ کـال کښې
دی شپیته کلن ؤ چه لوی بریالی
توب ور پـه بر خـه شـو او د
«رو بینسون کرو زونه د عجیب
سرګذشت» په نامه کتاب په خپرولو
سره دی ډیر مشهور او محبوب
شو .
دغه کتاب چه په ۱۷۲۰ کال کښې
په فرانسوی ژبه تر جمه شو نه
یوازی د دو فؤلـه پاره یـی ډیر
ستا یوال پیدا نکړل بلکه ډیـرو
خلکو دهغه په تقلید نـو مـوړی
رومان ته ورته داستا نونه ولیکل
دوفؤدپنځو کالو په موده کښـی
نور داستانونه هم ولیکل چه ډیر
مشهور یی «دمشهور سمنـدری
غله کاپیتن سینګلتون ژونـد او
ماجرا » «۱۷۲۰» دمل کامیابی او
ناکامی» (۱۷۲۱) ــ «دکلنل جـك
قصه» «۱۷۲۲» «دیـوه سـواره
خاطرات »«۱۷۲٤»«لیډی رخسانا
یانیکمر غه بنځه» «۱۷۲٤» دی.
دوفؤ تر ۱۷۳۱ کال پوری سیاسی
اجتماعی اواقتصادی رسالی هم
لیکلی دی. خوله یوی یی هم دروبینسون
کروزوئه د شاهکاری ارزښت او
اهمیت پیدا نکړ .

**رو بینسو ن کروزوئه:**

دادیوه عجیب ماجرا غوښتو نکی
زلمی ملا ح روبینسون کروزونه
قصه ده چه پوره ۲۸ کاله یی په یوه
غیر مسکونه جزیره کښې یوازی
ژوند کړی دی داجزیره دامریکی
دیو ساحل په اوږ دو کښې دشط
اعظم مصب ته نژدی پر ته ده دازلمی
ملاح دیوی انګلیسی بیړی دډوب کیدو
په اثر چه دی هم پکښـی ؤ هغی جزیری
ته تللی دی دنو موړی بیړی ټول
خلك ډوب شول او یوازی روبینسون
ژوند ی پاتی شـو چـه بیا هغـی
جزیری ته لاړ.

دروبینسون داستان د نړی داد بیاتو
له مشهورو قصو شخه دی دا قصه
ډیره خوږه ده عجیبه خو په دی ده
چه په هغی کښې بنځی ډیر کوچنی
رول هم نه دی لرلی په ۱۷۰۵ کال
کښې یو انګلیسی ملاح چه الکساندر
سلکید ك نومیده دشیلی ساحل
ته نژدی په یوه متروکه جزیره کښې
یوازی پاتی شو اوخلور کـالـه
وروسته کا پیتن اوژدچه له نړی
شخه ګیر چاپیره ګرځیده ده تـه

نجات ورکړ .ددغه متروك ملا ح داستان په هغه وخت کښې انګلستان په هیجان راووست داهیجان دومره سخت ؤ چه دانیل دوفؤ یی دی ته مجبورکړ چه دیوه خیالي متر و ك انسان داستان ولیکی یو ناشر ددغه یوکتاب دخپرولو په باب ورسره موافقه وکړه نودانیل دوفؤ چه چیری لیری نه ؤ تللی اوسمندری سفر یی هم کله نه ؤ کړی داسی خوږ اوعجیب داستـان و لیکه چه لهدی نه دمخه چانه ؤ لوستلی.
قصه داسیده روبنسون کروزوئه تل غوښتل چه په پیښـو پسـی وګرځي سـره ددی چه پـلار ا و خلپوانی ډیر نصیحتونه ورته کوی مګر دی یی نه منی او کو ر څخه تښتي.

کله چه دی په خپل سمندری سفر پیل کوی نو بدی حادثی ورتـه پیښیږی اوله ډیر ناامید یـو او کړاوونوسره مخامخ کیږی.دټولو نه بده پیښه داده چه دده بیـړۍ اود بیړۍ لـه ټو لو سپر لـیو څخه یوازی دی ژوندی پاتی کـیږی دبیړۍ په یوه دړه ځان دیوی جزیری ساحل ته رسوی داجزیره دبیړیو له لاری څخه لیری پرته ده.

دی اوس په جزیره کښی یوازی له طبیعت سره پاتی کیږی په دی فـکـر کښـی کیـږ ی چـه د ژ وند تـیر و لـو لـه پـا ره باید څه وکړی. دفکر کـولـونـه ته ورځی ځینی شیانیی چه لاسته ورتلای شیهغه ورسره اخلی او په یوازی توب سره په جزیره کښې په کار لګیا کیږی ځان ته ځینی شیان جوړوی اوبیا لههغه څخه استفاده کوی دی په دغه حالت کښې یوازی له خپلو جوړشویو سامانو او دجزیری لهمرغانو سره خبر ی کـوی .

روبینسون ځان ته یوه جو نګـړ ه جوړ وی دژوندانه ضرورىا ت له ده څخه هم نجار هم خیاط اوهم ښکارچی جوړوی دی یوازی هغـه وخت لهانسانانو سره مخـامخ کیږی چهدنورو جـزایرو وحشي انسانان دغی جزیری ته ورځییوه ورځ یوی ډلی وحشیانو غوښتل چه په خپلو کښې یوتن چه څهګناه یی کړیوهپه دغه جزیره کښې ووژنی روبینسون دغه سړی له مرګ او دوحشیانو له منګولی څخهخلاصوی څرنګه چهدغه وحشی تهدجمعی په ورځ نجات ورکړ شوی دینودی په هغه باندی د «جمعه» نوم ږدی.
جمعهد روبینسون نه بیلیدونـکی ملګری کیږی اودخپل بادار پهخیر جهاني شهرت پیدا کوی .

له روبینسون سره دجمـعـه له ملګریتوب څخه پههغه جزیرهکښې ټولنه جوړیږ ی او هغه خبریاتری چه تردی دمخه دروبینسون لهپاره یوازی آرزو ښکاره کیدلی اوس حقیقت پیداکوی .روبینسون د جمعه دروزلو پهلار کښې همتکوی او داجتماعی ژونـد اصول ورته وروستهه دږوبی شوی بیړی ساحل

بنیی .د۲۸کالونه وروسته یوه
بیړۍ دهغیجزیری‌پەساحل کښې
لنگر اچوی او روبینسون یی‌له
خپل ملگری جمعه‌سره اروپاته
رسوی روبینسون چه‌شته من او
بهای شوی‌دی خپل ژوندپه‌نیکمرغی
او هوسایی تیروی .

روبینسون یو ډیر په زړه پوری
اوهیجان راوستونکی داستان‌لری
کوم بدلون چه‌د داستان دقهرمان
په ژوندانه کښې راځی هغه زیاتره
د ژوندانه دډول په تغیر اړه لری
نه دمحیط په‌بدلون .په‌دغه‌لوبه‌کښې
عجیب علایق شته او هغه‌دادی .
یوه ټولنه‌چه موجوده وه رنگه‌شوه
او هغه عوامل‌چه‌دغه‌ټولنه‌وربان‌دی
ژوند ی پاتی کیدله څه ناڅه له
منځه لاړل .نو په‌دغسی شرایطو
کښې له‌نوی سره ژوند کول به
څنگه‌وی ؟

روبینسون اوس دیو مجردزندانی
حکم لری دی داسی یوبندی دی‌چه
هرشی‌ ور څخه اخستل
شوی دی اویوازی دژوندانه له
ډیرو ابتدایی امکاناتو څخه
استفاده کولای شی .خو دی له
دغی خطرناکی آزموینی څخه د
خپل کار په برکت سرلوړی
راوځی .دی خپل وخت‌په‌اندیښنو
اوفکرونو نه تیروی ژر کار ته‌هڅه
کوی اوله طبیعت سره په مبارزه
لاس پوری کوی اومحیط ته‌دخپل
ژوندانه سره سم تغییر ورکو ی.

دی هغه میری‌ته‌ورته دی‌چه دوخت
تیریدو ته یی پام نشته او دخپلی
ځالی دجوړولو له‌پاره بل څه نه
بلکه کارکوی .که‌څوك روبینسون
شی هغه بیا ستومانی او کسالت
نه‌لری پیښنی له پیښنو زیږی د
زړی بزی له‌پوستکی څخه دجامو
جوړولو اختراع اودکبانو نیولو له
پاره دوړی بیړۍ جوړول ډیر ی
عبرت ناکی پیښنی دی‌باید وویل
شی‌چه په‌دی داستان کښې په گډ
ژوند کښې دآزادی احساس ډیر
زیات لیدل کیږی .

له دغه‌کتاب څخه ډیر پندونه
زده‌کولای شو له‌کاراو فعالیت او
همت سره دروبینسون انز وا
اویوازی توب او د طبیعت له‌نا
مساعد و شر ایطو سره داسی
مبارزه چه هرڅه دخپلی‌استفادی
د پاره تسخیر و ی د ژوند ا نه
دمشکلا تو په مقابل کښی
داستقامت اوثبات ډیر ښه‌درس
دی چه دغه کتاب ئی خپلو
لوستونکوته ور کوی ـ له جمعه
سره دده دو ستی اود ژوندانه
دمشکلا تو دهیسته کولو له‌پاره
ددوی یووالی او اتفاق مو نږ ته
ددوستی او اتفا ق اهمیت په‌ښه
شان څرگند وی.

روبینسون دانگلستان حتی‌دنړی
له‌منل شو یو شا هکا رو څخه
دی‌چه دنړی په ډیرو ژوندیوژبو
ترجمه شوی دی.

## روح ا لقوانین

### دمنتسکیو اثر :

روح القوانین چه دفرانسی‌دلوی
انقلاب دبنسټ ډیره گټه کیږی

دفرانسې داتلسمې‌پیړۍ دادبیاتو
حقوقي او اجتماعي‌شا هکار دی.
دا یوداسې کتاب‌دی چه‌دپیړیو او
زمانو په تیر یـدو سره زړښت
نه‌لري .دکتاب لیکوال فرانسوی
ادیب او فیلسو ف منتسکیو دی
شارل منتسکیو په۱٦۸۹کال کښې
«بردو» ته ورخرمه په « لابرده»
نومې ځای کښې زیږیدلی دی‌اوپه
۱۷۵۵ کال کښې په‌پاریس‌کښې
مړشوی دی دده دکورنۍ ډیـر
غړي قاضیان‌وو منتسکیو دخپل
ماشوم توب دوره‌د«لابرو»په‌مانۍ
کښې تیره کړ او په ۱۷۰۰ کال
کښې ددینې علومو یوې مدرسې
ته‌سپارل شوی دی بیا په«بردو»
کښې دحقوقو په پوهنځي کښې
شامل اوپه ( ۱۷۰۸) کال کښې
دخارنوال په حیث مقرر شو .په
پاریس کښې دخلورو کلواستوګنې
ده ته مو قع ورکـړه چه خپـل
معلومات په تیره په‌تاریـخ‌کښې
بشپړ کړي په ۱۷۱۳ کال کښې
دده‌دپلار له مړینې نـه وروسته
دپارلمان دحقوقي مشاور په‌حیث
ومنل‌شو دتره‌له‌مرګ‌نه وروسته
دبرد و دیوې محکمې در ئیس‌په
حیث مقرر شو خوژرئې وښودله
چه دی یووچ‌اوبې ملاحظې‌قاضي
ندی‌په ۱۷۱٦ کال‌کښې دبردوپه
نوی تاسیس شوی علمي اکاډمی‌کې
غړی شو اوهلته یې خپله مشهو ره
رساله ( درومیانو دسیا ست په باره
کښې خیړنې) ولیکله وروسته له
هغه یې په‌تدریج سره نوری بیلې
بیلې موضوع ګانې ولیکلې دغور
سالو ښودله چه لیکوال په ټولـو
اجتماعی اوعلمی رښتو کښې دنظر
او معلوماتو خاوند دی داجتماعي
موضوعاتو تحلیل اوتجز یې په‌ده
کښې دانتقاد روح قوی کړ چـه
بیایې ( ایـرانی لیـکونه ) کـتاب
ولیکه اوهغه بیا په ۱۷۲۱ کـال
کښې په‌امستر دام کښې بی له‌دی
چه دمؤلف نوم یې ذکر شي خپور
شو. ددغه کتاب شهرت چه‌خلکو
یې مولف وپیژنده باعث شو چـه
منتسکیو ته دپاریس دسالو نونو
دروازې پرانیستلې شي دی تـر
۱۷۲۵ کال پوری هـر و خـت
سالو نونه ورته اوله لیکو ا لـو
او پو هانو سره یې تماسونه‌لرل
په ۱۷۲۷ کال کښې ورو ستـه
له هغه چه دی داکاډمی غړی شو.
اتریش ـ ایتالیې المان اوهالند
ته‌یې اوږده مسافرتو نه و کـړل
دایتالیې له جنوب څخه ترشمال
پورې ټول لوی ښارونه یې وکتل
اوبیا له هالند څخه انګلستا ن‌ته
لاړ ده په دغو مسا فرتو کښې د
هغو هیوادو داقتصادی اوسیاسی
اوضاعـو په بـاره کښې خپـل
یا دداشتونه ، مشاهدات را ټول
کړل اودغه مهم اسناد یې دیـو
کتاب (درو میانـو د عظمـت او
انحطاط په باره کښې ملاحظات )
په شکل کښې خپاره کړل. خوپه
خور لسو کالو کښې دده مهم

اولوی کار دده دخپل شا هکار، ( روح القوانین ) لیکلی دی. دغه بی ساری کتاب لومړی په۱۷۴۸ کال کښی په ژنیو کښی چه د مولف نوم نهٔ پهٔکښی ذکر شوی چاپ شوی دی .

دغه شاهکار سره دهغه لهٔعجیب موفقیه بیا هم لهٔانتقاد ځخهٔخلاص نشو په تیره بیا ژانسنیستیا نو دکتاب دردولو په باره کښی څور سالي ولیکلی . مو نتسکیو ددغو ټولو انتقادو په ځواب کښی یوه رساله ( له روح القو انین ځخه دفاع) په نامه ولیکله سره ددي همدده شا هکار د سورنی دمحکمی لهٔخوا محکوم‌شواوپه روم کښی‌هم دغه کتاب په ۱۷۵۱کال کښی سانسور شو مونتیسکیو د خپل عمر و روستنی کالونو د پاریس او بردو ترمنځ پهٔمسافرتو نوکښي تیر کړل او په دغه موده کښی‌ئی څوکتابونه هم ولیکل‌چه یوهٔیی هم «دروح‌القوانین» ځای ونشو نیولای .

دا منـل شوي خـبره د ه چـه مونتیسکیو داتلسمی پیړی یـوه رونبانـه خبـره ده ، د ده دوخت خلکو دده ذاتی شرافت اود آثارو عظمت تهٔئی پهٔډیر احترام قایل‌ؤ ده دنویو اجتماعی علومو دبنسټ ډبره ایښی‌ده دی یواصلاح طلب اشراف اود رونبانه فکر خاوند ؤ چه دده ځینو افکارو پـه تیره د دریو گونو قواوو دتفکیک نظریی د فرانسی دلـوی انقلاب پـه ابتداء کښي دآزادی غوښتنی‌ژوره روحیه پهٔخلکو کښي پیداکړی او د اساسی آزادی تعریف چه د نو نسمی پیړی لبـرالیزم ورځخه دفـاع کـوی مشخص کړی‌دی .

**روح‌القوانین :**

پهٔدغه شاهکار کښي یوه مهمه دیباچه اویو ډیرش کتابونهٔشامل دی اوهر کتاب ئی‌له پنځه لسو ځخهٔتر شلو پوری فصلونهٔ لری. دکتاب اصلی موضوع‌دنړی دټولو موضوعه قوانینو پهٔباره کښي‌یوه تطبیقی څیړنه دهٔپه کتاب کښي د قوانینو ترمنځ د موجوده روابطو اودهغو د متشکلو عـواملو لـکه سیاست ، مالیاتو آب‌وهوا سننو او ادابو، پیسو اوتجارت دمقرراتو نظامی قدرت او مشروطیت پهٔباره کښي بحث‌شویدی. په حقیقت‌کښي مونتسیکو خپلی ټولی قواوی‌ددغه کتاب په تدوینولو او لیکلوکښي مصرفی کـړی دی او خپلی ټولي تـاریخی ، اقتصادی ، سیاسی ، اجتماعی او مذهبی ایدی ئی ددغه اثر دپاره استخدام کړیدی . دهٔبه په خپله ویل«زه د ادعاکولی شم چهٔخپل عمرمی ددغه کتاب لهٔپاره صرف کړی کله‌چه بنوونځی ځخه فارغ شوم اوحقوقی کتابونه ئی‌را وسپارل له هرڅه نه دمځه پهٔدی هڅه کښي‌وم چه دهغو روح درك کـړم » . لـهٔهمـدغه ټـکی ځخه مونـړ پـو هیږ لای شو چـه د

مونتیسکیو زیات تره هغه داوه چه دقانون وجودی علت کشف کړی او اغیزی ئی معلومی کړی نه دا چه هغه زده او یاد کړی . نوځکه د مونتیسکیو په نظر کښی دقضیی تاریخی او اجتماعی جنبه ئی له قضایی اوحقوقی جنبی څخه زیاته مهمه ده .

مونتیسکیو پردریو ډولو حکومتو قایل دی چه هغه جمهوری مشرطه او استبدادی دی اوعقیده لری چه دری اصله دغه ډول حکومتونه ساتلی شی چه لومړی ئی تقوی ده چه جمهوری حکومت ساتی دوهم ئی شرافت دی چه مشروطه حکومت ساتی او دریم یی ډار اوویره ده چه استبدادی حکومت ور باندی ساتل کیدای شی هیڅ مقنن نشی کولای چه له ځان نه یو دوامدار اثر په یاد گار پریږدی مگردا کار هلته کولای شی چه دهرهغه حکومت د اصل رعایت وکړی چه دی قانون ورته لیکی .

دی په خورلسم کتاب کښي زمان اومکان په نظر کښی نیولی یوه مسأله طرح کوی او وایی چه قوانین په عین حال کښی په جغرا فیایی عوا ملو لکه طبیعی محیط اقتصادی شرا یطو د خلکو په حالت او نژادی خصو صیاتو پوری اړه لری.

دکتاب د لیکلو اودرجه بندی طرزیی بیخی نوی دی اومونتسیکو دپخوانیو په خلاف دقانون جوړولو دسر چینی دموندلو له پاره په واقعیاتو پیل کوی. دغه علمی روش له کلی نظریاتو او عمومی افکا ر و سره مغایرت نه لری. دغه مصلح فیلسوف د غلامی ظلم او عنعنه پر ستی په ضد مبارزه کړی نوځکه فیلسو فانو دی ستا یلی دی دده نثر دومره روښانه صریح اوعام فهمه ؤ چه هر چا یی کتاب ولوست او گټه یی ورڅخه واخسته دفرانس ادبیات ددغه لوی انسان دکو ښښ او هنر مـد یون دی. ده وکړای شو چه عمومی حقوق عام پسند هم کړی.

روح القوانین د بشری عقل یوجالب اثردی او په ادبی لحاظ هم ډیر اهمیت لری.

## دسؤیل گیره کلونکی او دفیگارووواده

### وبو مارشه اثر

دغه دوی کمیدی کلا سیکی ډرامی چه په اتلسمه پیړی کښی دفرانسی داد بیا تو له شهکاریو څخه گڼل کیږی دفرانسی دلوی ډرامه لیکونکی بومارشه له آثارو څخه دی.

بو مار شه د سو یل ږ یر ه کلونکی دډرامه لیکونکی دخپلی پیړی یو عجیب شخصیت د ی دی په داسی د نیا کښی پیدا شوی دی چه دطبقاتی مرا تبو سلسله پوری حکمفرمایی لری او دی چه په اول کښی یو سا عت جوړو نکیؤ عجیب مو فقیتو نه لاس ته راوړی. اوځان دټو لنی

دلوموړیو درجه افرادو په صف
کښې دروی.
بومارشه په ۱۸۳۲ کال کښې
دپاریس په سن دنیس کوڅه کښې
زیږیدلی دی ورو سته له هغه چه
دما شوم توب دوره پای ته‌رسوی
خپل ابتکاری نبوغ په ساعت
جوړولو کښې په کار اچوی ده
په دغه وخت کښې ډیر ښکلی
سا عتو نه جوړ کړل او هغه یی
دپاچا معشوق میر من پمپا دوړپه
خپله پاچاوډ پاچالوړوته و ړا ندی
کړل او په دغه تر تیب یی‌دهغوی
دوستی او ملاتړیی حاصله کړه.
ورو سته بیا دی دهغوی‌دچنگ
استاد شو. په دی ترخ کښې
دپاریس د یو سو داگر دتوصیی
په اثریی د شته منیو پیداکولو ته
هڅه وکړه او په لنډه موده کښې
یو بډای سړی‌ور څخه جوړ شو.
ورو سته بیا د مختلفو سیاسی
عللو په اثر اسپا نیی ته‌لاړ چه
دخپلو کمیدی آثارو مرچ‌اومالگه‌یی
له‌هغه ځایه پیدا کړی دی‌په۱۷۷۰
کال کښې دی په ځینو دعوا گانو
کښې مصروف شو د یو معروف
بانگ دار وراره او وارث دولا
بلاش په بو مار شه با ندی د
۱۳۹۰۰۰ لیر و خسا ری د عوه
وکړه په ابتدایی محکمه کښې
بومارشه محکوم شو او په
استیناف کښې بری الذمه شو
خو بیا بیر ته په تمیزکښې‌محکوم
شو. تردی ورو سته دی له نورو
خلکو سره هم ددعوو په جنجال
کښې و لو ید چه د هغو په اثریی
داسی رسالی ولیکلی چه‌په‌کښې
دمحکمو په خصو صیا تو خبری
شوی وی په دی ترخ کښې یی په
۱۷۷۵ کا ل کښې خپله یو ه
شاهکاری درامه ( د سو یل ږ یر
کلوونکی) و لیکله. په دی و خت
کښې په ا مر یکا کښې په
انگلیسی مستعمرو کښې اخوډب
پیښ شو او س ددی و خت راغی
دهر چا دلاسه چه څه و شی نو
فرانسی ته دی خد مت و کړی.
بو مار شه د د و لت په
ددولت په خو ښه دو سلوڅوبیړی
اغتشاش کو ونکو ته وا ستو لی
که اغتشاش کو ونکو ددغو وسلو
پیس ور کړی وی نوده به ډیره
گټه کړی وای.
تردی ورو سته بو مار شه
دفرانسی درا ما تیك لیکو ا ل
راټول کړل او له دوی څخه یی
وغوښتل چه داغتشاش کو ونکو
له حقو قو او اد عا گانو څخه
ددفاع‌په اساس دی خپل آثارولیکی.
بیا ده پخپله د «فیگاروواده»ډرامه
چه‌په حقیقت کښې د «دسویل‌ږیره
کلوونکی» دډرامی ادامه ده ولیکه
او په دی وسیله دډیر شهرت او
افتخار خاوند شو ځکه‌خلکو ددغه
اثر ډیر هر کلی‌وکړ «۱۷۸۴»تردی
ورو‌سته بومارشه په اجتماعی
مدارجو کښې نزولی قوس طی‌کوی
انقلاب راځی اودی نظربند کیږ ی

اوحتى بندى خاني ته بيول كيږي
شوموده  وروسته انقلابي حكومت
دي دوسلو اخستلو لهپاره هالند
ته استوي خو شوموده وروستهيي
نوم دمها جرينو په لست كښې
ليكي. بومارشه په خارج كښې
دريو كلونه وروستهبيرته پاريس
ته ځي او هلته په ١٧٩٩ كال كښې
مړ كيږي.
دغه ليكوال دخپلو ډرا مو د
قهرمان «فيگارو» اصلي نسخهدي
خودده شخصيت له فيگارو شخه
ډير محبوب دی څكه دغه سړی
چهپه ربښتيا سره دخپلي پيړی
زوی دی دنجابت اودزړه پاكولي
سره يیهغه تباه كاریهم شته چه
له مادي مسايلو څخه پيدا كيږي.

## دسويل ږيره كلو ونكى

ددغي ډرامې خلاصه چهاول پـه
پنځو پر دو اوبيا په څلورو پردو
ويشل شوی دهپه لاندی ډول ده
يو مخور سړی الماويوا په يوه
نجلي «ازينى» بانديمين شوی‌دی
دانجلي يو ساتندوی «قيم»چـه
«باتو لو» نوميږي هم لري دغهقيم
په حسود انه توگه دا ښاري څكه
لاس نشي موندلي كوښښ كوی
چه دموسيقى دعلم په لباس‌كښې
دهغه كورته لارپيدا كړی.
لهبلي خوا فيگارو شيطان پهډير
چلونو اوچالاكيـو دبار تـولو د
حسادت راز ځان ته معلومه وی
خوبارتولو چه پهښاركښېدكنت‌له
اوسيدو څخه په انديښنه كښې
دی كوښښ كوی چه لهازين سره
په خپل وادهكولوكښېبيړه وكړی
خو الما ويوا ورڅخه وار وړ ومبی
كوی .او ازين ځان ته نكاح‌كوی
كله چهبارتولو پهدی مـو ضو ع
خبريږی لومړی ډير خو اشيني
كيږي خوبيا پوهيږیچه دقيموميت
ددوری حساب ور څخه نه غواړی
آرام كيږی او نكاح خط دشاهـد
پحيث امضاء كوی.
د«سويل ږيرهكلوونكى» پهډارمه
كښد ی‌دبوماشه «تم»يوپخواني«تم»
دی دلته يو سړی هـمدقيم رول
لو بوی اوهم درقيب. كله عاشق
كيږي اوكلهنوكرورڅخه جوړيږی
همدغه موضوع ته ورته يـوه
مو ضوع موليږ په پخله يوهډرامه
«دښځومكتب» كښېراوړیده.
له دی سره د واده كولو ارزولری.
كنت الما ويوا ديو جرار شيطان
خوپه عين حال كښې دمهربـا ن
سړی دسويل دښار دږيریكلوونكى
«فيگارو»پهمرسته كوښښ كـوی
چه دبارتولو كورته لار پيدا كړی
اوپه خپله كنت الما ويوا چه په
كنتي اواشرافي جامه كښې ازين

## دفيگارو واده

داډرامه دبوماشه يوبل شاهكار
دی چهپه ١٧٨٤كښېښودل شوی
ده دولتي مقاماتو تر دريو كالو
پوری دهغه دننداری اجـازه نـه
وركوله خو كله چه خـوځله پـه
خصوصي تو گه ددولتي مقاماتو
په مخ كښې وښودل شـوه ددی

زمینه برابره شوه چه‌دپاریس په اودئون صحنه کښې وښودله شي. ددې ډرامې دننـداری لـه پـاره دومره خلك راغونډ شوی ووچه خو تنه په هجوم کښې دنورو تر پښو لاندې شول دډرامې دننداری نه‌وروسته یې په‌خلکو کښې زښته زیاته اغیزه‌کړی وه.دفیګارودواده موضوع ډیره ساده ده .

یو عالي مقام ستیور پخپلې‌نفر خدمتې مین‌شوی دی دانجلۍدومره جرئت لری چه مقاو مت وکړی شي او دومره نیکمرغه ده چه په دغه مقابله کښې کامیابه شـي د ډرامې په پنځو پردو کښې بیلې بیلې جالبې حادثې پیښیږی چه هغه ټولې د سوء تفاهم بڼه‌وبدلولو او اشتباه ګانو څخه منځ ته راځی د قضیې آنتریك په دې کښې دی چه فیګارودکنت‌الماویوا مخصوص نوکر شوی دی او غواړی چه له کلفت کنت سره چه سوزان یې بل نوم دی او ښکلې خندانه نجلۍ ده واده وکړی خو ددغه کار په مخ کښې دوه مانعه شته . یو دا چه کنت هم سترګی په سوزان‌خوږ کړی دی بل داچه د مارسلین زړه په فیګارو ورغلی دی څو موده‌دمخه فیګارو له مارسلین څخه یوه‌اندازه پیسې په پور اخـیستې وی او دهغو په مقابل کښې یې له دی سره دواده کولو وعده ورکړی‌وه اوس مارسلین د فیګارو اوسوزان له ازدواج سره مخالفه ده اوددغه کار مخه نیسې داله فیګارو څخه غواړی چه‌یادی دپور پیسې‌ورکړی او یادی په خپله وعده وفا وکړی. ددې دعوی قاضي کنت دی دی سر بـیره پـه باداری دخـپلو خدمتګارانو تر منځ قضاوت هـم کوی خو څرنګه چه کنت سوزان په نظر کښې لری نو په دغه دعوی کښې مارسلین حق په جانب‌بولی.

په اول‌کښې خو داسې‌بریښیدله چه فیګارو به مایوس شي اوهرڅه به له لاسه ورکړی خو ناڅاپـه هرڅه په لاس ورځی څکه مارسلین غفلتاً متوجه کیږی چه فیګارودده ورك شوی او غلا کړی شوی زوی دی . او نو دا کوښښ کوی چـه سوزان د کنت له خولې وباسی خو ددغه کار دپاره یوی نقشې تـه ضرورت دی او هغه داده چه‌کنت باید په څه خبره رسوا کړی‌شي. کنت ته د ناورن ترونـو لانـدی دسوزان دملاقات‌کولووعده‌ورکوله کیږی هغه ځای ته بل څوك نه کنتس ( د کنت ښځه ) ورځی او

په دې ترتیب سره یو نظر بـاز میړه رسوا کیږی کنتس د کنت

له ګناه څخه په دې شرط تیریږی چه فیګارو ته د سوزان د ناوی

کیدلو مراسم په خاصه تـوګـه اجرا کړی او کنت هم په دغه‌وعده وفا وکوی .

# ژان کریستف

## دژومن رولان اثر

ژومن رولان ستر فرانسوی لیکوال او د ژان کریستف دکتاب مؤلف داسی لیکی:

« ما دهغه نسل تراژیدی لیکلی چه انقراض ته نژدی شوی ماپه هیڅ وجه دا کوښښ نه دی کړی چه دهغو له فضایلو او یار ذایلو څخه څه شی کم کړم اندیښنی او خواشینی ـ کبراوغرور دقهرمانی کوښښونه اوبیا مانی‌یی پټه کړم».

دغه لوی لیکوال د نړی دلویو هنر مندانو بیوگرافی لیکلی دی په تیره د موسیقی هنر مندان یی زیات مطالعه کړی دی او لوی آلمانی موسیقی پوه بتهوون دهغه په قلم معرفی شوی دی .

ژان کریستف هم په حقیقت کښی د موسیقی د یو داسی هنر مند جامعه بیوگرافی ده چه هغه په خارجی عالم کښی نشته او یوازی د لیکوال د فکر محصول‌دی دا کتاب د فرانسی د معاصر و ادبیاتو یو منل شوی شاهکاردی.

ژومن رولان په١٨٦٦ کال کښی په « نیوانه » کښی زیږیدلی دی ده د موسیقی په تاریخ کښی ښه تخصص موندلی‌ؤ .

ده د یو لړ نویو ډراماتیکو ډرامو په لیکلوسره غوښتل‌چه دفرانسی دتاتر سطحه لوړه بوزی خو دده ډرامی دومره کامیابی نشوی نو ځکه مجبور شو چه دلویانوشرح حال

ولیکی چه‌په دغه لار کښی‌ئې یر بریالی شو لکه چه‌دبتهوون بیوگرافی یی په ١٩٠٣ او دمیکل آنژبیوگرافی یی په ١٩٠٥ او د تولستوی ژ و ند پیښی یی په ١٩١١ او دگاندی دژوند حالات‌یی په ١٩٢٤ کال کښی ولیکل .

دواقعی هنرمندانو دژوند پیښو د لیکونه علاوه ده خیالی هنرمندانو دژوندانه دپیښو په لیکلو هم‌پیل وکړ .لکه چه‌ژان کریستف چه‌ددی یوشاهکار دی له‌همدغه رازلیکنو څخه دی‌ژومن‌رولان ددغه‌کتاب‌په‌لیکلو کښی اته کاله زحمتونه وایستل .

هغه وخت چه‌دلومړنی‌لویی‌جگړی (١٩١٤ـ١٩٩٨) اورونه لگید لی ؤ ژومن‌رولان‌په‌سویس کښی‌ژوند کاوه .

دی‌هلته پاتی ؤ چه خپل آزاد فکر (دجگړی دپاسه )همدغسی آز اد وساتی اوددواړو دښمنو خواوو ترمنځ د اتفاق او ورورۍ سرود وغږوی .دی په (١٩١٦) کال کښی دنوبل دجایزی په‌اخستلو بریا لی شو .

ده‌د تولستوی په‌خیرچه‌ځان یی خپل استاد باله دسبك له پیروی څخه ډېره کوله دده سبك ساده دی او بی متنوعه ښکاری دتغزل ننی پکښی لیدلی کیږی.

### ژان کریستف:

دغه کتاب چه‌په لسو جلدو کښی لیکل شوی دی دهغه موسیقی پوه سرنوشت ښیی چه‌دده خیال منځ کال څخه تر ١٩١٢ کال پوری موده کښی لیکل شوی دی. ښځی مخصوصاً دغه‌کتاب‌ډیر لولی .

دژان کریستف کتاب دهغه چا
سرگــذشت بیانــوی چه د هنر
ښکارندوی او په تیره په ژوندکښې
دموسیقی دهنر مظهر دی .
د «رناني» له ښارونو ځخه په
یو کوچنی ښار کښې یوماشوم پیدا
کیږی داهلك تر خــو چه لویږی
له بدبختیو ناداریو او تحقیرونو
سره مخامخ کیږی خوپه همدغسی
شرایطو کښې دموسیقی پوه وسیعه
دنیا هم کشفه کوی .
پلاریی کوښښ کوی چه له ده ځخه
یولوی سازی (نوازنده) جوړکړی
خو دی له آهنګ جــوړولو سره
علاقه لری .«ګرن دوك» چه د ښار
یو مخور سړی دی کلــه چه دده
« دځوانی لذتونه »آهنګ اوری نو
له ده ځخه د ښاریانو ړغوونــکی
جوړوی (لومړی جلد سپیدی ).
هغه کورنی چه د پلار دشــراب
خوریو په اثر غریبه شــو ی ده
یوازی په هغی حق الزحمی ژو نــد
کوی چه زوی یی ددرس ورکولو په
وسیله لاس ته راوړی هغه ملګری
چه دغه هلك یــی پیــدا کــوی دده
وروڼو دشیطانت په اثرو ځخــه
بیزاره کیږی اوهغه مینه چه دی یی
دیوی محترمی کورنی له یوی پیغلی
سره پیداکوی دغریبی له امله پــه
ناامیدی بدلیږی .دپلار ناځاپــی
مرګ ده ته دژوندانه دقانون تریخ
درس ورکوی دا درس مبارزه کول
اوزحمت ګالل دی .

(دوهم جلدـ سباروون) .
اوس ژان کریستف ۱٦کلن شوی
په ده کښې یی بی اندازی خلاقه قدرت
دزلمی توب له هیجانو اوپریشانیو
سره یو ځای کیږی یو ځل بیا یی
مینه په زړه کښې ځای نیسی اوپه
روح یی سیوری پریوزی داخل دی
په یــوه مهربانه اوخوږه پیــغله
«سابین» مین کیږی خوسابین پخوا
له هغه چه کریستف له هغی سر ه
خپله مینه ښکاره کړی مړه کیږی
بل ځل یوه بدرنګه او کرغیړنه
نجلی چه «رزا» نومیږی ځــان تــه
غواړی په رزا باندی ژان کریستف
ګران ندی خو دومره بدرنګه ده چه
دهنرمند ژان دمینی جوګه نشی
کیدلای. آخر ژان کریستف په یوه
خو دا نجلی ده ته فریب ورکوی
بله مغازه داره نجلی مین کیږی
غمونه اوګړاوونه یــی زیاتــو ی
(دریم جلد ــ نوی زلمی توب).ژان
کریستف دا آلمانی هنر دغه نیمګړتیا
چه په احساس له تظاهر کولو ځخه
ډك اوله ابتکاراواستاد ی ځخه تش
دی درك کوی دی خپله دغه ادراك
هرچیری ځرګندوی خودده دتنبیه
له پاره دی په نادانی اوپه هنرنه
پوهیدو تومتی کیږی اودښمنی
ورسره شروع کیږ ی دی په یوه
مخالفه ورځ پاڼه کښې دموسیقــی
پوهانو خلکو اونــقادانو په ضد
سختی مقالی خپــروی او خــپل
عکس العمل په د ی توګه ښیی ګران
دوك دی له ښار ځخه وباسی .دلته
ژان مجبوریږی چه دآزاد وافکارو
هیواد فرانسی ته لاړ شی او هغه
هیوا دته لاړ شی چه هلته یوه نجیبه
خوغمجنه معلمه (انتوانت ژانــن )
هم ژونــد کــوی اویوه بی لاری
نځیدونکی (کورین )هــم پکــښی
استوګنه لری. خو آخر دی له خپلی
مور ځخه ځنګه لاړ شی اوهغه ولی
یوازی پریږدی ؟ بالاخره دی لــه
ځینو کسانوسره سخته جګړه کوی.

کوی له‌دغه ځای څخه په‌تګ‌کولو
مجبوریږی (څلورم جلد ــ طغیان)
په پاریس کښې له‌هرڅه نه‌بیزیږی
او په هرشی‌کښې مکراوفریب‌وینی
ددوینی چه موسیقی په تشریفاتو
مقیده ده ادبیاتو غیر اخلاقی لاره
نیولی تقلب په ټولنه کښې‌سرایت
کړی‌دی سیاست دخود پرستی
بڼه غوره‌کړی ده نودی په‌دغسی
ټولنه کښې کوم‌شی ته احتیاج‌لری
او که‌نه ؟ ټولنی ته‌دده غمجن خو
مهربان نظر او دهغی ګـاونډ ی
پیغلی «سیدونی »فداکاری چه د
میشیلد دکورخدمتګاره‌ده دی‌له‌هغه‌څه
څخه خبروی چه زړه‌یی‌غوار ی.
(پنځم جلد ــ بازار)

له‌یو مهربان خو محـبوب زلمی
سره دده‌دوستی ده‌دغه راز بربنډ
وی .دغه زلمی «اولیویه ژانــن »
نومیږی اودهغی معلمی وررور دی
چه آنتوانت نومیږی اوژان‌کریسف
دمخه دالیدلی وه داهغه نجلی وه
چه ژان کریستف سره دکـومک
کولو له‌امله هر ډول فداکاری ته
چمتو وه خوددغی مهربانی ښځی
ماشوم‌چه ژوندانه ستړی کړی‌دی
مړکیږی او ژان کریستف‌وربانډی
سخت خواشینی کیږی «شپږم‌جلد
انتوانت »

دده ملګـری (ژان کـریستف ا و
الیویه ژانن )یواپارتمان په اجاره
اخلی اوپه هغه کښـې استوګـنه
غوره کوی اوس کریستف واقعـی
فرانسه درك‌کوی اوپوهیږی‌فرانسه
یـو کـوچـنی آرام هیـواد دی
خوپه خپله موقع کښې قهرمان هم
دی اولویو کسانو اوشاعرانو لوی
معرفی کړی دی. داملت‌فردپرستی
لری خو دا فردپرستی یی‌دجګړی
دتهدید په‌مقابل کښې‌پخپله له‌منځه
دروی(اوم‌جلد په‌کور کښې) اوس
ژان کریستف مشهور شوی دی
«اولیویه»واده کوی‌اوژان‌کریستف
چه‌یوازی پاتی شـوی‌دی دیو ی
موسیقی رغوونکی ښځی‌په‌دوستی
او دیوی نخیدونکی په مینه او د
پخوانیو دوستانو پـه مهـر بانی
باندی تکیه کوی یوه ورځ داسی
هم راځی‌چه اولیویه له‌خپلی‌ښځی
څخه جلاکیږی‌اوبیرته‌ژان‌کریستف
ته ورځـی او دوی دواړه ګـډ
دوستانه ژوند له‌نوی سره شروع
کوی (اتم جلد ــ دوستان )

اولیویه یوښه اجتماعی احساس
پیدا کوی یوه ورځ په جګړه کښې
یوبی وزلی سړی له‌مـرګـك نه
خلاصوی کـریستف په‌یوه جګړه
کښې له ځان څخه په دفاع‌کو لـو
سر ه یـــو ســـړ ی و ژ نـی
اویوی پروتستانی کورنی (براون)
ته پناه وروړی .«انابراون»چه په
زړه کښې دمینی اورلری اوپه‌ښکاره
سړه ښکـاری دژان کـر یستف
معشوقه کیږی. دواړه بی هوده
کوښښ کوی‌چه انتحار وکړی خو
دغه کاریی نتیجه نـه‌روکـو ی
کریستف تبښتی خو خلاقه قدر ت
بیادده په‌جسم کښې حلول کوی او
دی له‌خپلو دردونو څخه بی غـمه
کوی (نهم جلد ــ په‌اورکښې‌لګیدلی
بوټی)

کریستف دسـولی اوصـفا ا و

هوسايي پهژوند کښې بوډا کيږي
دود اورواج دده دخوشبينی قوی
روح ته صدمه نه‌پېښوی‌د(اوليويه)
دزوی اود(گراتزيا) د لور ترمنځ
چه دوی له پخوانيو دوستانو څخه
پاتې دی دواده ترتيبات نيسی او
بيادی پهداسې توگه چه څوك نه
وربانديخبرېږی ځان پټوی په
داسی حال کښې چه تبه يې هم
لرله د ناقوسونو ږغ او د«رن»
آهنگ‌چه‌دده دخوانۍ دخوښی له
آوازونو څخه ؤ اوري .

(لسم جلد – نوی ورځ ).

رومن رولان پهخپل دغه شاهکار
کښې ښيي چه‌واقعي هنرله‌ژوندانه
څخه منځ ته راځی‌داکتاب‌په‌حقيقت
کښې په‌نفس باندی‌دانسان‌کاميابی
ښيي .

## دستاندال اثر

سور اوتور دمشهور فرا نسوی
ليکوال ستاندال رومان دی اود
سايکلوژی تحليلاتو له مخی يو
شاهکار دی چه دبالزاك له ډيرو
آثارو سره برابری لری .

ستاندال دليکوال هانری بيل
مستعار نوم دی- دی په ١٧٨٣
کال کښی دگرنو بل په‌ښار کښی
زيږيدلی دی. موريې ژر مړه شوه
اودی يې دپلار خپلوا نو ته چه
ډير عبوس اومستبدخلك ؤ سپارل
شوی‌دی اوپه ماشوم توب کښی
په خوشی پلمو سره په لر گيو
وهل شوی دی آخر دی مجبورشو
چه‌له دغی کورنی څخه پاريس‌ته
وتښتی. دی دهغی ورځی په سبا
پاريس ته ورسيد چه ناپليون
کودتا کړی وه اوځپله امپراتوری
يې جوړه کړی‌وه په همدغه وخت
کښی دی په عسکری کښی شامل
شو. ايتاليی ته دناپليون بناپارت
دتگ نه دوی ورځی وروسته دی
دسر برنار په‌لاره تير شو خود
باردوکلا په‌خواه دتوپونو ږغ ی
وربانديوشوی نژدی ؤ چه دا
شيبه دده دژوند وروستی لحظه
شی خو نجات يې ومونده د
مارانگو په جگړه کښی چه دناپليون
دجنگی شاهکاريو څخه‌گڼله کيږی
گډون وکړ.بيابيرته پاريس ته‌لاړاود
عمر څو نور کاله يې په ادبی

خیرونو کښې تیر کړل او ښې
تجربې یې پهدې لار کښې حاصل
کړې .
په ۱۸۰٦ کال کښې بیادناپلیون
پهلښکر کښې شامل شو او له
امپراتور سره یو ځای پروس
او بیا روسیې ته لاړ . دغه دوره د
ستاندال له قهرمانۍ دورو څخه
ګڼله کیږي ځکه چه په همدغه
وخت کښې دده دماجرا جو یی
حس ډیر تسکین شو هغو سختو
ورځو چهپهده تیری شوې په
ثبات کښې یې بده اغیزه ونه کړ
له روسیې څخه دناپلیون دپس
کیدو په پریشا نوونکي وخت کې
هم دده په ننداړه کښې دمایوسی
اوویرې نښې نه لیدلې کیدلې.
سره ددې هم دجګړو ستو مانیو
دی ډیر کمزوری کړی ؤ په ۱۸۱۳
کال کښې له عسکرۍ څخه مت
څخه یې ځان ګوښه کړ .

دناپلیون دماتې نه وروسته دی
دبوربون دکورنۍ له طرفدارانو
سره سخت مخالف ؤاوسره ددې
چه ده ته یې دلوړې چوکۍ وعده
ورکړې وه له هغوی سره همکاری
ته حاضر نه شو په داسې حال
کښې چه ډیر خوار او پریشانهؤ
(میلان) ته لاړ کوم شی چه ده په
هغه ښار کښې لرل هغه آزادي
وه .تردې وروسته دستاندال په
ژوندانه کښې یوه بله دوره
شروع کیږي اوس چهدی لهعملي
کارو څخه لذت نشي اخیستې

غواړي چه هغه لذت دشعر او
موسیقې سفرعشق ـ عشق او
ادبیاتو په نړۍ کښې حاصلکړي
خو ورځې وروسته داتر یش‌پولیس
ور باندې شك من کیږ ی او دی
له هغه ځای څخه تبعید کوي .
ستاندرال بیا پاریس‌ته‌پهداسې
انقلاب پیښ شوی دی همدغه خبره
وخت کښېراځي چه‌په‌پاریس‌کښې
دی خوشحاله‌کوي دده په عقیده
لویی فلیب‌له‌اتلسم لویی اولسم
شارل څخه ډیر دتحمل وړد ی.
پهدې وخت کښې دی غواړي چهپه
ایتالیاکښې دفرانسې دکونسلګرۍ
په غرږ توب لاړ شي چه خپل
محبوب ښار روم ته نژدې و ی.
دی تریسست ته استو ی او څو
موده په ایتالیا کښې پاتې کیږي.
بالاخره په ۱۸٤۲ کال‌کښې‌دزړه
په ناروغی مړ کیږي.
ددغه لیکوال شهکار دوه وومانو
نه چه یویې (سور او تور) د ی
چهپه (۱۸۳۱) کا ل کښې لیکل
شوی دی‌او‌په‌هغه‌وخت‌کښې یی‌ډیر
لږ هر کلی هم نه دی شوی بل‌یی
شار تروردوپارم‌دی‌چه‌په (۱۸۳۹)
کال‌کښې یی‌لیکلی‌دی .اوبل کتاب
یې دخپل ژوند د پیښو په باره
کښې لیکلی دی چههغه بیا دده‌له
مرګ نه‌وروسته‌خپور شوی اوپه
هغه کښې صداقت او جسارت
دیادون وړ مطالب دی.
ستاندرال یو تکره ریا لیست
لیکوال دی چه‌له تکلیف‌څخه وتلی
سبك لري په هغه‌وخت کښې دده

په آثار و انتقاد ونه کیدل ده په امکان لری چه جاه طلب زلمی ژولین خپله په دی باره کښی لیکلی دی سورل یوه مقام ته ورسیږی.
چه «زه د خاصو خلکو له پاره آثار لیکم زما په خبرو بهپه ۱۸۸۰ کال کښی خلك وپوهیږی.»
آخر دده داخبره رښتیا هم شوه ځکه خلك وپوهیدل چه دغه تکړه لیکوال چه ښه حساسیت او روښانه فکر یی درلود دانسان پټ جهان ډیر ښه رابر سیره کړی او د انسان په روحی تحلیل او تجزیه کښی له جز وی خبر وځخه هم غافل نه نه دی تیر شوی حق لری چه ده ته (دزړه څیړونکی) لقب ور کړ ب شی.

## سورا و تور:

ستا ندال سره ددی چه په ایتالیی مینو خود خپل داستان صحنه یی فرانسه گر ځولی ده:
ژولین سورل دیو دردگر (دعاویونکی) زوی دی خو ځان توریالی ته وقف کوی «له توریالی ځخه مقصد ظاهر ا دکشیش کسب دی اود «سور اوتور» په نامه کښی دتور د کلمی تعبیر همد غه شی دی» دده دغه کار یی دجا ه طلبی لهمخی دی که چیری ژولین سور ل په بل وخت یعنی د نا پلیون په عهد کښی ژوند کولی ده به دسور د پاره ځان وقف کړی وی (دسروالی نه مقصد دعسکر ی کسب غوره کول دی.)
هو ! په داسی وخت کښی چه دبور بون کورنۍ دناپلیون په ځان سلطنت کړی یوازی دکشیش له لاری اوس داشرافو پهلړ کښی راغلی

امکان لری چه جاه طلب زلمی ژولین سورل یوه مقام ته ورسیږی.
ژولین سورل ددینی علومو محصل دی چه د«وری یر» دښار دښاروا ل ښاغلی رنال دزامنو دروزنی وظیفه ورسپارله کیږی دی په ښکاره د هلکانو دښوونی او روزنی وظیفه په غاړه اخلی خو په پټه کښی دکورله میرمن اودهلکانو په مور سترگی سری کوی. خوآخر پدی کامیابیږی چه دمیرمن رنال زړه لاس ته وروړی کشیش څو موده دخپل بادار په کورکښی په خوشحالی او عیش تیروی خوبیا دیو نو کرد غفلت په اثر یی راز ښکاره کیږی اوله هغه کور څخه شړ ل کیږ ی بیا وروسته له هغه چه څو ورځی ددینی علومو په یوه مدرسه کښی تیروی دیو اشراف (مارکی دولامل) دمنشی په حیث استخدام کیږی دی دخپل نوی بـا دار اعتـما د پـه د ی اندازه را جلبو ی چـه د هـغـه د ټولو اسرا رو محـر م کیږی اوباداریی له ده سره د مشوری نه پرته کار نه کوی ژولین چه یـو شهوتی زلمی دی په دغه کور کښی هم آرامی نه لری او دډیری هڅی نه ورو سـته دخپـل و لینعمت نازولی اومغروره لور پیغله ماتیلا په دام کښی نښلوی. خودا عشق هم رسوا کیږی او پر ته له دی چه نجلۍ له ده سره واده وکړی بله چاره نه لری. ځائن زوم چه اوس داشرافو په لړ کښی راغلی

دی دخانی لقب پیدا کـوی اود عسکری منصبداری فرمان یی په نا مـه صادر یـږی او ورو ورو دترقۍ پهلوری گامونه اخلی ا و لوړو مقا نوته رسیږی پخوا نی معشوقه میرمن رنال چـه اوس دژولین له نظره لو یدلی ده له ده څخه دانتقام اخستلو په هڅه کښی ده دښځی انتقام خطـر ناك دی. دایو بی نومه لیك دژولین مافوقو مقا ماتو ته استو ی او پـه هغه کښی دده له هو یت څخه پر ده جگوی. دغه تو متی لیك ددیباعثلیکلی او په ۱۷۲۶ کال کښیخپور کیږیچه ژولین خپله شو کی له شوی دی. لاسه ور کړی. ده ته په دغهکار ډیر قهر ور ځی او تصمیم نیسی چه له هغی ښځی څخهانتقامواخلی یوه ورځ چه میر من رنالکلیساته ځی نوکر یی وژنی اوپـه دی هم ډزی کوی خودا ور څخه خلاصیږیمړ په دغه کار سره دی فو راً پـه توقیف کښی اچول کیږی بیا په مرگ محکو میږی او وژلکیږی. جالب ټکی دادی چهژولینسورل دخپل ژوندانه تروروستنیوشیبو هم نه ور خطا کیږی او په ثبات او متانت دمر گ هر کلی کو ی. ددهدمرگ نه وروسته میر من رنال له ډیری غصی څخه ناروغهکیږی اومری دژولین ښځه او معشو قه دخپل میړه سر پټوی او په پوره احترام یی خاورو ته سپاری. داکتاب دیـو سـړی رښتیانـی سر گذشت دی چه د فـرانسی مجلو په ۱۸۲۷ کال کښی هغـه چاپ کړی دی خو ستاندرالدهغه شکل گر ځولی اود سور او تورپه قالب کښی یی را و ستلی دی.

داکتاب په سایکا لوژی اوتاریخی فلسفه کښي عمیق اثر بللشوی دی چه مو ضو عات یی ټولدعلل او معلول په اساس بیان شویدی.

## دکاليو سفر نامه

### دجانتن سولفيت اثر :

داخوږ انتقا دی کتاب انگلیسی مشهور لیکوال جانتن سو لفیت لیکلی او په ۱۷۲۶ کال کښیخپور شوی دی.

جانتنسولفیتپه ۱۶۶۷ کال کښی په آیر لند په پایتخت دویلتن کښی زیږیدلی دی او په۱۷۴۵ کالکښي په داسی حال کښی چه خپل عقل او حواس یی لاسه ور کـړی ؤ مړ شوی دی.

سولفیت سره ددی چه مو ر او پلاریی انگلیسیؤ له ایر لند سره چه په کښی زیږیـدلی ؤ ډیـره علاقه لر له ا و هغه و خت چـه ایر لندیا نو په انگلستان کښی دایر لند دخپلواکی له پارهمبارزه کوله سولفیت ورسره ملگری ؤ او په دغه لار کښی یـی ډیـر زحمتو نه و گالل.

په ۱۶۸۹ کال کښی د انگلستان دیو اشراف سرو یلیام تمپل په خد مت کښی شا مل شو او دده دمنشی گری وظیفهیی په غا ړه واخستله. تمپل چه یو عالم ادیب او سیاسی سړیؤ لویه کتا بخانه

لرله چه سو لفیت لـه هغی څخه
استفاده کوله له همغه وخته یی
داشعارو په و یلو اود مقالو پـه
لیکو پیل و کړ او له مذ هب څخه
په دفاع کښی یـی خـور سالی
ولیکی. آرزویی لرله چه یوه ورځ
لوی پادری شی دهمد غه مقصد
له پاره یـی د «ویك» پـه ډلـه
کښـی چـه بـیا د لیـبـر ا ل
حزب ور څخه جوړ شو ځان‌شامل
کړ خو کله چه هغه حزب د چارو
واگی په لاس‌ونیولی‌او له‌سولیفت
سر ه یی په خپلو و عد و فا نه
کړه نو ده ځان له «توری» ډلـی
سره چه اوس د محافظه کارانو
په‌گـو ند مشهوره ده مـلحق کړ
د محافظـه کـارانـو گونـد دی
په ایر لند کښی د سن پا تر یك
سن د کلیسا رئیس مقرر کړ خو
څرنگه چه دغه مقام د سو لفیت
په زړه پوره جوړ نه ؤ نه زړه یی
له هغه گو ند څخه تور شو . دعمر
په آخر و ختو کښی په ایر لـند
کښی یوه نفر سر مایه دار ته د
سکې و هلو د امتیاز ورکولو په
ضد د سختو مقالو په خپرو لو
سره ښه محبو بیت پیدا کړ اوپه
دی وسیله د آیر لنـد د آزادۍ

غوښتلو د نهضت علم بر دار شو
سو لفیت زیات کتابونه اورسالی
لیکلی دی چه ټولویی د لیکنی د
سبك روانی او سا دگۍ اولطافت
په لحاظ په انگلیسـی ادبیا تـو

کښی خاص شهرت پیدا کړی‌دی
خودده شاهکار دنړی دادبیاتو له
شا هکا رونو څخه دی او دا هغه
کتاب دی چه مونږ یی به لاند ی
ډول شرح کو و .

## د گالیور سفر نامه :

د انگلستان په ادبیاتو کښی د
گالیور سفر نامه داسی یو اثـر
دی چه د هر وخت او هر ځـا ی
دلو ستونکی د ذوق او پو هـی
سره‌سم دی ، په همدغه سیاق دوه
نور کتابو نه په انگلیسی ادبیاتو
کښی شهرت لری چه یـو یـی
رو بینسون کرو زوله دی چه‌مونږ
په بیله مقاله کښی شرح کړی‌دی.
د گالیو رد سفر نـامی موضوع
داده چه یو ملاح «الموېل‌گالیور»
چه اول طبیب ؤ او بیا ملاح شو
دهغو پیښولهامله‌چه‌دلوی اقیانوس
په مجهولوبر خواو نوروسیندونو
کښی ور باندی راغی نوم ورکو
سیمو ته چه د لیکـوال د ذهـن
مخلو قی دی وړل کیږی .
له دغو سیمـو څـخه یوه هـم
«لی لی یوت» ده ددغه ځای خلك
زمونږ د لاس له گو تو څخـه‌واړه
دی او په دغه هیواد کښی هر څه
په همدغه تناسب واړه دی .

بله یی «براب دنیك یك» ده چه
خلك یی ډېر قوی دی او دریمه
سیمه یی «پر نده لا پو تا» ده چه
خلك یی طبیعی جسمو نه لری خو
علیل او مر یضـ روح لـري او

بالاخره یو بل هیواد «هوین هم» دی چه اسو نه یی هوښیار اوپوه دی او په نورو نا پو هو حیواناتو حکو مت کوی .

د ګالیور سفر نامه انتقادلرونکی اشاری او کنا یی لری او سولفیت د دی له پاره چه د خپل و خت له ځینو کسانو څخه تکلیف و نه مومی هغه یی ګالیور نو می ته چه په حقیقت کښی په خپله دی دی منسوب کړی دی د ګالیور سفر نامی دخپرویدو په اول کښی د خلکو تر منځ لوی بر یالی تـوب ګټلی دی لکه چه د لو مړی ځـل چاپ په وخت کښی ټول وپلورل شو او بیا چه د دو هم ځل لـه پاره چاپ شو په لږ وخت کښی بیا ورك شو . سولفیت د ګالیورد سفر نامی په لیکلو کښی د خپل سلف د رو بینسون کرو زوئه د مولف دانیل دیفو په څیرد خپل وخت دخلکو په میل اوشوق تکیه کړی وه هغه وخت خلکـو سـمندری سفرو نه ډیر خو ښول نو ځکـه ده دګالیور د یو ربښتیا نی سفر په څیرو لیکه . ده کو ښښ کړی دی چه د ګا لیورتجربی اومشاهدی په داسی ژوند ی توګه ولیکی چه خلك ور باندی با ورو کړی او د دی د پاره چه خلك د سفرنامی پیښښی د روغ و نه بولی د خـپل

یوازینی شی چه زه یی د خـپل سر ګذشت په لیکلو مجبورکړی، یم هغه «دتولنی دخیراوصلاح رعایت کول دی . »

سولفیت کوښښ کړی دی داسی یو عالم جوړ کړی چه عیناً واقـع شوی وی دی دپاره چه لوستونکی باور وکړی چه په ربښتیا د «لی‌لی پت» په نامه کومه سیمه شته دهغی موهومی سیمی له‌پاره یی یوه نقشه هم ترتیب کړی ده چه هیڅوك په لومړی نظر کښی په هغی باندی شك نه پیداکوی دغه رازده موهومو سیمو دلـویوالی او کـم وا لی ښودلو له پاره ریاضی اومحاسبی هم په کار اچولی دی .

سولفیت په خپل دغه کـار کښی دومره کامیاب شوی ؤ چـه دده دوخت ځینو ساده خلکوفکرکاوه چه دګالیورسفرنامه یوه ربښتیانی سفر نامه ده لکه چه دسولفیت یو دوست دیـو انګـلیسی اشرا ف لـه خولی وایی چه ده ته یو ملاح ویلی چه ګالیور ښه پیژنی یوازی حروف چین دهغه دکور پته غلطه ترتیب کړی ده . دغه راز همغـه سړی دهمغه انګلیسی‌لارډ له‌خولی وایی . کله چه مادګالیور سفرنامـه خپل دوست ته ورکړه هغه ژرپاڅید او د جغرافیا نقشه‌یی راوړ ه چه

کتاب په پای کښی لیکی «مازیاته» د حقیقت پیروی کړی ده » او

دلی‌لی پوت سیمه پـکښی پـیدا کړی . »

ادبی نقادانو ثابته کړې ده چه
سولفیت ددغو حوادثو په ایجادکښی
له څو مشابهو کتابو نو څخه
استفاده کړې ده او له «حقیقی تاریخ»
او دفرانسوی لیکوال را بله له
(پانتاګروسیل) څخه یې الهام
اخیستی دی . خو دغه تصورات
بی ځایه دی ځکه هر څومره چه
سولفیت دنورو آثاروته نظر کړی
دی بیا هم دده خیالی سفرنامه د
موضوع په لحاظ د اسی فلسفی
دقیق نکات لری چه اصالت او
ابتکار پکښی بیخی زیات دی .
ددغه کتاب له لیکلو څخه دسولفیت
عمده مقصد لکه چه دی وایی دادی
چه نړۍ والوته ازار ورکړی نه
دا چه دتفریح وسیله ئی شی نو
ددغه هدف له پاره یې له داسی
شیوی څخه کار اخیستی دی چه
له ډیرووختو راهیسی داروپا په
ادبیاتو کښی معموله وه . چه هغی
ته په فرانسوی ژبه «شاتیر» او په
ا نګلیسی ژبه کښی « ستایر »
ویل کیږ ی او موږ ئی په
«انتقادی هجو »باندی تعبیرولای
شو .

«ساتیر» په ننني ادبیاتو کښی هغی
شیوی ته ویل کیږی چه مقصدیی
د تحقیر او تنفرت او استهزاء
دحس پارول وی . دا باید و نه
ګڼل شی چه دسولفیت انتقادی
هجو مخرب او منفی انتقاد معنی
لری دی وایی «زما سفرنامه به
دنیا اصلاح کړی نو ځکه به دخلکو
د تعجب سبب هم شی » سولفیت
فکر کاوه چه بشر سره ددی چه
بالقوه عقل او شعور لری خو په
حقیقت کښی عاقل حیوان نه دی
ځکه چه امیال او شهوات ئی په
عقل غلبه مومی . البته ده داهیله
نه لرله چه سفر نامه به یې ژرتول
در دونه دواکړی ځکه یقین یې
درلود چه دنیا په یوه ورځ کښی نه
جوړیږی خو په دی پوهیده داسی
قوت پکار دی چه دنیا جوړه کړی . .
په دغه کتاب کښی دسولفیت
نثر بدیع ــ روان ساده او په زړه
پوری دی . په لومړی او دوهمه
برخه کښی یې دقصی ویلو جنبه
غالبه ده او په دریمه او څلورمه
برخه کښی یې حکمت او انتقاد
زیات دی .

## دارسطو اثر

ارستو نامتو یونانی فیلسوف
دی چه په ۳۸۴ ق.م کال په مقدونیه
کښی زیږیدلی او په ۳۲۲ ق.م
کښی په شالسی نومی ځای کښی
مړ شویدی . دخپل پلار مشهور
طبیب نیکوماك دمرګ نه وروسته
ارسطو په آتن کښی استرګنه غوره
کړه او شل کاله ئی دخپل لوی
استاد افلاطون په مخکښی دفلسفی
په زده کولو کښی تیر کړل
وروسته له هغه دده استاد په
۳۴۸ ق.م کال کښی مړ شو ارسطو
له آتن څخه چه هلته ئی دمقدونیی
طرفدا رانو ته دعداوت په سترګه
کتل په آثار نه کښی دخپل یوه
ملګری دهرمیاس کاله ته ورغی او

دهغی له خوړ اویا خورځی سره
ئی واده وشو .
د هرمیاس غم‌لړلی سر نوشت
چه ژوندی دایرانیانو په لاس
ورکړی شو . ددی باعث شو چه
ارستو له‌هغه ښار څخه‌وتښتی‌او
دلسبوس جزیری ته‌پناه یوسی.
ده هلته څپله یوه مشهوره رساله
دتقواپه باب ولیکله .
له۳٤۲ کال څخه دلوی سکندر
مربی‌شو او په آتن کښې‌ئی‌استوګنه
غوره کړه‌په ۳۳٥کال‌کښې‌دسکندر
له‌خوا دیونان دنیولو نه‌لړه موده
وروسته ئی‌دپری پاتیتس په‌نامه
یومکتب جوړکړ . د دغه مکتب‌د
تسمیی وجه داده چه‌ارسطو په د
قدم‌وهلو په ترڅ کښی درس
ور کولو او په شا ګردانو به‌یی
تکراراوه.ارسطو دځپلوشاهکارونومکتب په (اوبه . پری پاتیك یا پری
پاتتیسین) مشهور ؤ چه هغه ته
دشرقیانو په اصطلاح مشائی‌مکتب
ویل کیږی چه دمشی یعنی په‌لاره
دتګ له لغت څخه مشتق شوی
دی .

ارسطو په مځکه پیژند نه‌کښی
هم نظر یې لری .
ارسطو دافلاطون یولوی شاګرد
دی چه دده له ډیرو نظر یو سره
یې مخالفت کړی دی اودده آثار
په تیره (مثل) تر نقد او تبصری
لاندی نیولی دی. ار سطو له
سیاست نه علاوه بل مهم کتاب
( اساسی قانون ) هم‌لری‌چه‌اصلی

یوری دبشری‌معلومات حدودتاکل
داسی بیکاریده چه ارسطودځپلی
نړی له‌تو لومعلوماتو څخه‌نصیبه
لرله .
ده‌دځپل عصر ټول علوم‌که هغه
ئی‌له پخوانیو څخه اقتباس کړی
اویایی له‌ځپلو معاصرینو څخه‌زده
کړی اویائی دځپلوځیړنو محصول
دی‌مونږ ته دیادګار په توګه پری
ایښی دی .
دده دکتابونو او رسالو شمیر
زیات دی‌اوپه ټولو علومو لکه
تشریح .فیزیو لوژی ، قیاس او
منطق . تاریخ او فلسفه اوتورو
کښی‌وارد ؤ .
مونږ په‌جرئت سره ویلای‌شوچه
دی دهغو علومو باتی او مبتکر دی
لکه چه دمخه وویل شو ل دده
عمده برخه په همدغه وخت او
همدغه ځای‌کښی ولیکله .کله‌چه
سکندرپه ۳۲۳ کال‌کښې په بابل
کښې مړشو ارسطو بیا مجبور
شوچه له‌آتن څخه ووځی اوله‌دغی
ویری څخه‌چه‌دسقراط له‌سرنوشت
سره مخامخ نشی د اوبه جزیری
ته‌له دی‌کبله وتښتیده چه آتنیان
بیادفلسفی په‌ضد جرم ونکړی ».
بالاخره دیونان محکمی یاجنایی
شوری (آره‌توپاژ) دی محاکمه او
په‌مرګ محکوم کړ .
دی په۳۲۲ ق.م‌کښې مړشو .
ارسطو دنړی له‌نوابغو څخه
یوتن‌دی اودده آثارو ترسلو کالو

نسخه یې په ۳۲۵ کـال کـښې حکومت له کلیو څخه . کلی له
لیکلې وه‌له منځه تللې‌ده‌وروسته کورنیو څخه او کورنی له افرادو
بیا داساسی قانون په باره کښې څخه جوړی شوی دی. کورنۍ او
یې مربوطه برخه یوه انګلـیسی اجزایی دحکومت نهایی غایه دی .
پو هاند (سر فرد ریك کنیو ن) په انسان کښې دنطق نعمـت د
موندلی اوپه انګلیسی یې تر جمه حکومت طبیعی والی ثابتـوی. د
کړی وه دارسطو داساسی‌قانون طبیعی نظم له مخی حکومـت پـه
په‌کتاب کـښې د ۱۵۸ هیـوادو کورنۍ او فرد مقدم دی. دکورنۍ
موسسه شرح شوی ده اود هغـو په باره کښې یو بحث. غلامی څـه
دمځکو په‌باب خبری شوی دی دا شی ده اوغلام څوك دی؟ . طبیعی
کتاب د« سیاست» دکتاب دبشپړ او غیر طبیعی مریونه. په غلامانو
کولو له پاره لیکل شوی دی . حکومت په آزاد و باندی له حکومت
**سیاست** : دارسطو دسیا ست کولو څخه فرق لری . دغو ښتنو
کتاب اوه بابونه لری. باید ووایو او هیلـو پـه بـاب اود ښـځو او
که څه هم دسیاست کتاب دلرغونی ماشوما نو په بـا ره کـښې نور
نړۍ دپو هنـی یو شاهکـار دی بحثونه .
سره ددی هم نه دارسطو ډیرمهم
کتاب بلل کیږی اونه د سیاسی **دوهم کتاب:ـ** پـوره مطـلو ب
مسالو دحل کولو له پاره دبشر حکومتو نه . افلاطون. فالسفـاس او
دفکر لو مړنی کوښښ ګڼل کیږی. هیپودام.
ارسطو دنړۍ دپو هنی په تاریخ ارسطووایی چه‌افلاطون دنظـرد
کښې دمنطق دموسس په حیـث نورو خاوندانوپه‌منځ‌کښی‌داصولی
پیژندل شوی دی اودده دلیکـنو مسایلو په باب خبری کړی د ی
څخه چه تر اوسه پور ی دبشـر دی دکورنۍ او مالکیت دلغو کولو
په فکر تسلط لری دده دمنطـق غو ښتنو نکی‌دی.ارسطو دافلاطون
رساله ده په عقاید و انتقاد کوی او وایی‌چه
دقانو نی مناصبواومقاماتو اختلاف
دسیاست دکتاب اته بابو نه یا طبیعی کاردی .که مالکیت لغوشی
کتابو نه په لاندی ډول دی . خوښی له منځه ځی او هرڅه‌ګډوډ
**لومړی کتاب** : دحکومت موسسه کیږی. اود ما شومانو او ښځـو
تعریفوی . حکومت دټولنی ډیره اشتراك نسلی تمایزمینه اومهربانی
عالی نوعه ده اوهدف یـې محض له منځه وړی دغه رازدافلاطون پـه
ښیګڼه دی. دټولنی له نورواشکالو دغه نظر نور ایرادونه هم واردوی
څخه دحکومت بیلتون . دخصوصی مالکیت دګټو په بـاره

کښې بحث .دافلاطون په جمهوریت انتقاد کوی او وایی چه دافلاطون عقاید داسی تیوری ده چه دعمل وړ نه ده او حقیقت به پیدا نکړی. وروسته له هغه ارسطو په دغه کتاب کښې دبل یونانی فیلسوف فالساس په عقاید وانتقاد کوی اود حکومت په نسبت دده دعقایدو په باره کښې وایی چه دده دغه طریقه به بډایان په قهر کوی خوتش لاسی به خوشحاله نه کړی په آخر کښې دهیپو دام په عقاید هم انتقاد کوی اووایی چه دغه فیلسوف یوازی تناسب ته توجه لرلی ده بیا دهیپو دام دحکومت په فضایی موسسه او دډولنی په فضایی نظام انتقاد کوی اوهغه عملی نه گڼی.

**دریم کتاب :** ـ ښاری فرد(چه په فرانسوی ژبه «سیتو این» بلل کیږی ) دساری فرد تعریف اودده حقوق او اختیارات ـ په هغو تعریفو نو انتقاد چه ارسطو نه د مخه دښاری فرد په باره کښې شوی دی . ښاری فرد هغه څوك دی چه حقوق اوسیاسی اختیارات ولری . په حکومت کښې دسیاسی اختیارا تو ویش ـښه ښاری فرد هغه څوك دی چه خپل حکومت ته خدمت وکړی کهدا حکومت ښه وی او که بد . دښاری فرد کیدوشرط دادی چه هغه دحکومت کولـو او حکم منلو په آدابو او رسمو نوپوه وی ـ فرد په ښو حکومتو نو کښې صنعتگران باید په ښاری افرادو کښې ونه شمیرل شی. دارسطو په عقیده افراطی دیموکراسی او دالیگارشی ځینی حکومتونه لهدغه ټکی څخه غافل دی . دحکومتو نـو طبقه بندی ـ (دیمو کـراسـیـ الیگار شی پاچاهی او ددغو حکومتو اساسی فر قو نه).

**څلورم کتاب:** ـ دحکومت داصلی نمونو ډولونه (اساسی قانون). ددیمو کـراسی او الیـگار شـی حکومتو نو تعریف اوددغو دواړو دامتیازو چه.څلورډوله دیموکراسی شته چه ډیره بده یی افـراطـی دیمو کراسی ده اوپه دغـه ډول کښې یی دخلکو غوښتنی داقانونی ځای نیسی . څلور ډوله الیگارشی شته چه ډیره بده یی داده چه پـه کښې منصبونه مور وثـی وی. د جمهوریت سـتـا ینه. جمهوریت ددیمو کراسی او الیگار شی دغاړه غړی کیدو څخه منځ ته راځی او دیمو کرا سی ته زیات میلان لری دستمگرو حکومت اود هغو ددریو ډولونو په باب بحث دعادی ښا ر دپاره ډیر ښه حکومت هغه دی چه دمتوسطی طبقی په واسطه اداره شی ـ هیڅ حکومت دمتـو سطی ولی له ملاتړی څخه نشی بینازه کیدلای

## دحکومت دساتنی لاری

**پنځم کتاب :** انـقلا بـونـه او تحریکات یی ـ په دیمو کراسی او الیگار شی آریستو کـرا سی او

جمهو ر ی حکو متو نو کښې دانقلابو نو اغیزی، د حکو مت کولو شرایط اود حکومت کوونکو اوصاف داستبدا دی حکومت او شاهي حکومت تر منځ فرق په «جمهوریت» کښې دانقلا بو نو په باب دافلاطون دناقص بحث په باب شرح.

**شپږم کتاب:** ددیمو کرا سی او الیګار شي دمو سسی په باب خبری.

الیګار شي او د هغې دبقاافراطي لاره ددیمو کراسی ساتنه د هغې له اساس اینښولو څخه سخته وه. الیګار شي دهغې دبقا په لارکښې په‌دغو حکومتونو کښې دمنصبونو او مقا ماتو تر تیب .

**اووم کتاب:** دخلکو او حکومتو کامل او بشپړ مطلوب د بشپړ مطلوب حکومت تصویر دهیواد او ټولنې په باره کښې د ښار ځای باید خنګه‌وی. دنظامي او اقتصادی له نظره په سمندر تسلط ـ باید په هر ښار کښې دا سې کسا ن واو سیږی چه هغوی خواړه‌برابر کړی شي. په هنرو پوهیږی اوویی ښو دلا ی شي . و سله‌وچلولی شي. دینی چاری سر ته ورسوی سیاسی او عدلی چاری سر ته

ور رسو لی شي . دمځکودمالکیت په باب بحث ددولتي او خصوصي مځکو تر منځ فرق په بشپړ مطلوب حکو مت کښې ښو و نه

او رو زنه اود هغو هدف اومراحل دواده دویر ښه سن په باره کښې دپلار او مور بدنی جوړ ښت دما شو مانو روحي او بدني روزنه.

**اتم کتاب:** د ښو و نې او روزنې دوام- مو سیقي او و رزش،ورزش د ښو ونې او رو زنې لو مړ نې مرحله ده امادسپا رتیانو په څیر باید دما شوم د فکر او هو ش په روزنه کښې بې پر وایي ونشي. مو سیقي یو ډول اخلاقي روزنه ده، د یو نان د بیلو بیلو ښارونو دبیلو بیلو مو سیقو په باره کښې بحث اود آهنګو نو تقسیمات. یوازې هغه آهنګو نه ښه دی چه فضیلت اوزړور تو ب انسان ته ور زده کوی.

# اسما نی ماشوم

## دآنتوان دو سنت ا کزو پری ا ثر

آنتوان دو سنت آکزو پر ي په ۱۹۰۰ کال کښې دنیون په ښا ر کښې زیږیدلی دی په څور لس کلنۍ کښې یتیم شو تر دی ورو سته دده ساتنه او رو زنه یی دمور په غاړه ولوید ه.

په ۱۹۱۷ کال‌کښې‌یې یوازینی‌وررور فرانسوا لی ډزړ ه د ر وما تیز م په ناروغی مړ شو او دکور نۍ دمعیشت بار دده په غاړه ولوید .

انتوان دفرانسې په هوایی قواوو کښې په وظیفه کښې په وظیفه کښې شامل شو او په دوو کا لو کښې یې‌دپیلو تۍ فن‌اودهغه‌تخنیك زده‌کړ اوبیا په‌نظامی خدمت کښې

شامل شو . آنتوان په د تحصیل
په‌موده کښې‌دنظم او نثرپه **لیکلو**
کښې خپله قریحه ازموېله چه په
دغه کار سره یې داستاد او د
تشویق اوتقدیر وړ گرځیده . په
هوایي قواوو کښې دشا ملېدو په
وخت کښې مې قع مو مـي چـه
دکاینا تو ښایست دپاسه وو ینې
اوله بشري ټولنوسره ښه آشنایي
پیداکړي. په۱۹۳۵ کال کښې یې
یو کوچنی ناول «مانون» ولیکه
چه دپاریس په‌یوه‌مجله‌کښې‌خپور
شو خـو چادی د دغـه ا ثـر په
لیکلو سره دلیکوالو په ډله کښې
ونه شمیره .دا گزوپری بل ا ثـر
«رجنوب‌پینگ» نومیږی‌اودا د هغه
وخت یادگار دی چه ده مرا کش
کښې ژوند کاوه . فرانسې ته‌دخپل
راتگ په‌وخت کښې چـه کـو م
لومړنی سوغات یې‌له‌ځان‌سره‌وړی
دی هماغه «رجنوب پیك »دی دغه
کتاب‌دده‌تره‌دزوی په‌واسطه ځینو
لیکوالو ته وښودل شو اولیکوالو
د یې‌تشویق‌کړ.

په۱۹۲۷ کال کښې دیو ماموریت
دسر ته رسو لوله کبله جنو بي
امریکې ته‌لاړه اوهلته ده ته دادبي
ذوق او قریحې دتعقیب کو لو له
پاره‌ښه فرصت مساعد شوودده‌دوه
اثره «دانسانانو مځکه‌او د شپـې
الوتنه دهماغه وخت یاد گارو نه
دي. په۱۹۳۰ کال کښې‌بیافرانسې
ته‌لاړه اود (شپې الوتنه) دکتاب‌په
خپرولو سره یې خپل ادبي مقا م
او هنري شخصیت اثبات‌ته‌ورساوه
و رو ستـه لـه هـغـه چـه
فرانسه المانی قواوو ته تسلـیم
شوه اگز وپوری له هغه هیـوا د
ځخه تبعید کړ شو او امریکې ته
لاړه ده په همدغه هیوادکښې‌خپل
ډیر ښکلی آثار « کلا» آسما نی
ماشوم او «جـنگـی پیـلو ت »
ولیکل .

ددوهمې جبهې د افتتـاح او د
فرانسې په سواحلوکښې‌دمتفقینو
دقواوو د پلی‌کیدو په‌وخت کښې
دی بیرته‌خپل هیواد ته لاړه اود
ډگرمنې په‌رتبه یې دمتفقینو په‌اردو
کښې‌دفاشیزم‌له‌ژغ ځخه‌دخپل‌هیواد
دخلا صو لو له پاره قربانی ته
چمتو شو. په۱۹٤٤ کال کښې‌یې
داشغال شوي فرانسې له پاسه
الوتنه وکړه چه دالمان ښکار ی
الو تکی ورځخه راچاپیر ه شوې
او دده الوتکه بیادگړ ته بیر تـه
رانغله .

انتوان دو سنت اگز و پر ی یو
انسان دوست سړی یونازك خیا ل .
باذوقه او تکړه لیکوال دی .دلیکلو
سبك یې دیر خووږ سـاده ا و
آسانه دی. دی داسې یو لیکوال
دی چه نو ی‌مطا لب په ډیر و
ساده او لنډ و عبارا توکښې‌لیکلی
او لوستونکی **محسور** وی .

**آسماني ماشو م .**

لیکوال دالو تکی‌دموتوردخرابیدو
په‌اثرښکته کیدوته مجبو ریږ ی
کـله چـه را کـو ر یږ ی‌نوځا ن

د ا فـر یقی د صحـرا په منځ
کښې وینی . په همغه‌وخت کښې
چه‌ډیر پریشانه اواندیښمن د ی
ناڅاپه یوښکلی ماشوم دده‌په مخ
کښې پیدا کیږی دغـه‌ماشوم په
همغه وچ بیا بـان کښې‌نـا آرام
او حیران نه ښکـا ره کـیـږ ی
ما شو م د نو ر و خلـکـو پـه
څیر دی او خپل هدف ته درسیدو
فکر لری او کار کوی . کله چه
دی‌له همغه څخه پـوښتنی کـوی
ځواب نه وایی مگر په خپله پر له
پسی پوښتنی کوی. دلته لیکوال
دماشوم په حقیقت او ما هـیـت
پو هیږی .

ماشوم له‌یوبل ستوری څخه د
نورو و حشی الو تونکو په جمله

**کښې را کو زشوی دی چه پد ی**

کښې را کو زشوی دی چه پد ی
نړی کښې داسی څوك پیداکړی
چه له ده سره دوستی و لر ی
اوله د ه‌سرنه ماتیدونکی تړو ن
وکړی‌داسی‌تړون چه‌په‌خپل‌ستوری شی .

کښې یی له خپل یواز ینی‌گل‌سره
په‌کو لو کښې نه دی‌بریالی‌شوی.
دغه هلك په‌شپږ ونو روستو رو
کښې‌هم کو ز شوی او مځـکی
ته دراښکته کیدو نه دمخه له نورو
خلکوسره چه خاص‌خاص‌جنو نو نه
لرل هم آشناشوی دی. هلـك
همغه عجیب خلك چه سخت‌په‌خپلو
کار ولگیادی اوله خپل هدف ا و
نقشی نه پرته په‌نړی کښې له‌بل
هیڅ حقیقت سره آشنایی نه لر ی

لوی خلك یادوی .خو له دغولو یو
خلکو سره دبحث‌په وخت کښې
دهغوی فکرو نه‌مبتذل‌ښیی‌اووایی
چه دوی یوازی دخپل ځان په‌باره
کـښـې فـکـر کـو ی
وا قعی فکر نه لری .له‌شپږ می
سیاری نه وروسته مـځـکی تـه
راځی او په مځکه کښې هم د
عجایبو له بیلو بیلو منظرو سره
مخامخ کیږی اووینی چه ټـو ل
خپل کارو نه جدی ښیی‌خو همغه
داسی کارو نه دی چه په موهومو
اساسو نوولاړدی .

حتی په خپله لیکوال چه په داسی
بدحالت کښې په‌صحراکښې پاتی
شوی دی‌اودخپلې الوتکې‌دموتو ر
دجوړ ولوپه فکر کښې دی باید
ددغه فکور او خو ش صحبته‌هلك
په مقابل کښې احتیاط له لاسه ور
نکړی اوداسی کار ونکړی چه‌دی
هم دشپږو نوروسیار ودخلکو په
څیر دده په‌نزدعجیب‌سړ ی ښکاره

لیکوا ل‌همغه هلك ته وایی : آخر
زه جـد ی‌او اسا سی کـا رو نه
لرم .

ده ماته په حیرا نو ونکی نـظر
وکتل وبی‌ویل: جدی کارونه؟ ته
هم دلویو کسانو په څیر خبر ی
کوی .مالږ څه خجالت وو یست
پیاده وویل:زه یو ستور ی‌پیژ نم
چه هلته یوسو ر رنگـی‌سړ ی
اوسیږی دغه سړی هیڅکله کوم
گل نه دی بوی کړی ا و هیڅکله

له چاسره دو ستی نه ده کړی او په خپل عمر کښی‌یی دازقامو دجمع کولونه پرته‌بل‌څه‌کارنه دی کړی. او همغه سړی ستاپه شان هره ورځ داخبره کوی‌چه زه‌یو جدی سړی یم . زه یو جدی سړی یم .»

باید وویل: شی کله آسما نی هلك دڅکی سیاری ته رازسیږی دسرو گلانو بوی باغچی ته ورځی اودهغو بو لو گلانو په لید و اندیښمن کیږی اوبو هیږ ی هغه سور گل چه ده په خپله‌سیاره‌کښی کیدل څه معنی لری؟

یوازینی گل باله یږ ا ز ینی نه‌دی .

دی پوهیده چه دده دگل اوددغو گلانو تر منځ فرق‌شته . دی‌بیاله یوی کیدړی سره‌مخامخ کیږی اوپه دی وخت کښی دی په یو لو ی راز پوهیږی اوورته څر گندیږی چه رښتیانی مینه څه‌شی ده؟

یوازی کیدړه پدی حقیقت پو هو ی چه امکان لری یواز ی دمینی په اثر یوشی یوچا ته یوازینی اوبی مثله ښکاره شی . تردی وروسته آسمانی هلك یوازی په دی فکر کښی دی چه خپلی سیاری ته لاړ شی او دخپل آسمانی گل له مینی او دوستی نه لطف وا خلی . همدلته دی محوه کیږی او نښه‌یی په بیا با ن کښی نه پا تی کیږی .

له کیدړی سره دآسمانی هلك مخا مخ‌کیدل دکتاب له ډیر وښکلو او له معنی ډکو فصلو نو څخه دی چه په حقیقت کښی دغه برخه دداستان دفکر اصلی محوزد ی چه ددو ونامنا سبو او نا مسا عد و موجو داتو په‌خبرو اترو کښی‌څان ښکاره کوی .

آسمانی ماشوم کیدړی ته‌وایی: راشه نه ما سره لو بی وکړه.

کیدړی وویل : زه‌خوا هلی شوی نه یم نو له تا سر ه لو بی‌نشم کولای .

آسمانی هلك پوښتنه وکړه:اهلی کیدل څه معنی لری؟

کید ړی په ځواب کښی وویل:- اهلی کیدل یو هیر شوی شی‌یعنی دعقلي ایجاد او مینه کو ل دی .

هلك پوښتنه وکړه:عقله‌ایجادول او مینه کول ؟

کیدړی وویل: هو! ته تراو سه پوری دنو رو زر گو نو ماشومانو په‌څیر یو ماشوم یی . زه تا ته اړه نه‌لرم . اوته هم ماته محتا ج نه‌یی ځکه زه هم تاته دلکو نو کیدړانو په څیر یوه کیدړه یم. خو که‌ته چیری مااهلی کړی نو بیابه یوبل ته‌سر ه اړشو .بیا به زه تاته په دنیا کښی یواز یني او یگا نه وم ا و تـه بـه هـم ما ته په د نیا کښی سا ر ی‌ونه لری .

په دغه ترتیب سره آسمانی هلك کیدړه اهلی کړه خوکله چه‌دخدای په امانی وخت ر اغی کید ړ ی

او و یل ـ آ ه ـ ز ه به وژا م .
آسمانی هلك وژه وویل: دانو ستا خپله گناه ده ماخوله تاسره بدی کول نه غوښتل بلکه تاپوه خپله غوښتل چه زه دی ا هلئ کړم نو اوس په ته ریښتیا وژاړی .
گیدړی وویل: البته !
آسمانی هلك وویل : ستادژړا به په گټه څه وی ؟
گیدړی وویل : زه به درسیدلو غنمو دیټیو په خاطر چه ستا زرین و ویښتان به راپه زړه کوی ژاړم .

وروسته له هغه آسمانی هلك دگیدړی په توصیه بیادسرو گلانو باغچی ته ځی دی احساس کوی چه دغه گلان دده له گل سره ډیر فرق لری . گیدړی ته وزځی چه خدا ی په امانی ورسره وکړی او گیدړه ده ته دغه راز څرگندوی چه :زما دوسته !ته یوازی د زړه په سترگو لیدلای شی ، هغه څه چه په ژوندانه کښی اصل دی له ظاهری سترگو څخه پټ دی کوم شی چه ستا گل ته ډیر ارزښت ورکړی دی هغه عمردی چه ناورته صرف کړی دی .
دکتاب اصلی موضوع عشق او مینه ده . ډیر پیښیری چه په ژوندانه کښی خوك راباندي گران وي او هغه دخپلی مینی مدیون وبولو مگر دغه تکی ته زمونږ پام نه وی چه دامینه په حقیقت کښی له خپل ځان سره مینه کول دی . ددغه فانتزی او خیالی داستان بله موضوع صفا ـ سادگی او اعتماددی . دآسمانی ماشوم کتاب چه په ډیر خواژه نثر لیکل شوی دی دفرانسی دادبیاتو یوه منلی شوی شاهکار دی .

## فاوست

### دگویته اثر

فاوست دالمان دبیاوړی لیکوال اوشاعر او یوهاند ولفگانگ فن گویته یو دراماتیك او فلسفی اثر دی . گویته په ۱۷۴۹ کال کښی په فرانکفورت کښی زیږیدلی او په ۱۸۳۲ کال کښی په دویما کښی مړ شوی دی . پلاریی سلطنتی مشاور و . گویته خپله دما شوم توب دوره دخپلی کورنۍ له مینې ډکه غیږکښی تیره او لومړنی تحصیلات یی له خپلو خصوصی ښوونکو څخه بشپړ کړل .
ښوونکو ده ته یونانی ـ لاتینی ایتالوی او انگلیسی ژبی ـ موسیقی نقشه کشی او حتی عربی ژبه او ختیځی اروپا دیهودیانو ژبه وښودلی . ده فرانسوی ژبه هم په هغه وخت کښی چه دپنځلسم لوپی عسکرو داووکالوجگړی نه وروسته د فرانکفورت ښار نیولی ؤ زده کړه . په ۱۷۶۵ کال کښی دخپل پلار داصرار له مخې دحقو قودعلم دزده کړی له پاره لایپزیك ته لاړه او په هغه ښار کښی یی دری

کانه تیر کړل او دهغه کور له یوی نجلی سره چه دی په کښې پانسیون ؤ صمیمانه او عاشقانه روابط پیدا کړل . دده لو مړ نیو اشعارو له همدغه عشق څخه الهام اخستی .څه موده وروسته دنقشې اخستلو داستاد په لور چه دده استاد ؤ مین شو خودغه عشق‌ډیر عمیق او آرام ؤ . په ۱۷٦۸ کا ل کښې دنارو غتیـا پچال کـښې فرانکفورت ته لاړ اود خپلی مورپه تقلید مذهبی ټولنو ته‌یی تګ او راتګ پیداکړ. کله چه روغ شو دخپلو حقوقي تحصیلا تودبشپړ کولو له پاره شتر سبورګ ته‌لاړ او په ۱۷۷۱ کښې یی د لیسا نس په درجه بری لیك وا خست .

بیرته فرانکفورت ته دتګ‌په‌وخت کښې دالمانی فیلسوف هرد ر په تشویق چه‌په ګویته کښې یی زیات نفو ذ پیدا کړی ؤ . دمنشو ر ډرام په لیکلو پیل وکړ چه هغه یی په ۱۷۷٤ کال کښې خپـو ر کړ او په دی تر تیب یی نو م دادب دلویانو په فهرست کښې راغی تردی وروسته دخپل‌ډیرلوی شا هکار فا وست دلیکلو په فکر کښې‌شو .

کله چه‌د ی په ۱۷۷۲ کال کښې په وتزلار کښې په‌یوه قضا یی وظیفه مقرر شو په هغه ښار کښې دیوی نجلی شار لو ت بوف‌سر ه آشنا شو او سخت ور با ند ي مین شو خودانجلی یی دملګر ي ګستنر بند ٔه وه نو همدا سبب ؤ چه ګو یته له دغې مینی څـخه نصیب نه دی لوده خوددغی مینی محصول دده یوبل شا هکار (دوزتر سر ګذشت ) دی چه په ۱۷۷٤ کال کښې نشر شو .

فرانکفورت ته دبیر ته تګ نه وروسته یی ډیری عالی ډرا می ولیکلی چه پر و متـه (۱۷۷۲) ګلاویګو (۱۷۷٤) اواستلاد(۱۷۷٦) له‌هغې جملې څخه دی. اوپه‌دغه‌وخت کښې یی دخپل‌مهم‌شاهکارفاوست یوه برخه هم ولیکه .

له ۱۷۷٥ څخه دګو یته دژوندانه په مسیر کښې بدلو ن راځی‌اوسن دی پوره شهرت او افتخار لر ی . لوی دوك دی خپل در بارته ور غواړی اودخپل‌ځان‌مشاوریی‌مقرروی په دی وخت کښې دی له سیاستی او اقتصادی مسایلو سره عـلاقه پیدا کوی خو ورسره دادبـی او علمی څیړنو لمن هم نه پریږدی اما دادبی څیړنو له پاره یی و خت لږدی .

دی په دی وخت کله مشاور دی او کله ددباره وزیـر ،سـر ه ددی هم ګویته پد غـه و خـت کښې دخپل ور تری رومانتیز م‌له مکتب څخه وځـی لاپخیـږی او کاملیږی دایفی ژنی درام چه دی‌یی په ۱۷۷۹ کال کښې خپرو ی‌ددغی مد عی شاهدی ورکوی .

ایتالیی ته سفر دګویتـه‌دافکا رو په جریان کښې یوه نوی مرحله ګڼله کیږی او لړ غو نو وختو هنرډیر زیات دده فکر و رجلب

کوی ، سره دې هم کوم آ ثا ر
چه‌ده په دغه وخت کښې لیکلی‌دی
ایټالوی رنګ نه‌لری په ۱۷۹۲ او
۱۷۹۳ کالو کښې ګویته دفرانسي‌او
پروس په‌جګړوکښې ګډون کوی او
شل کاله وروسته ددغو جګړ و
په‌باره کښې خپلې خاطرې لیکې.
په ۱۷۹٤ کال کښې له ا لماني
شاعر سره یې آشنایي دده ژوند
ته‌یوه نوی ر نګ راولی او په د غه
وخت کښې د شیلر په ملګر تیا
داشعار و یوه مجموعه خپره وی.
وروسته له‌هغه یو لوی رو ما ن
چه‌په خپله دده دژوند پیښې دی
لیکې او د«ویلهم مستر دزده کړې
کالو نه » په‌نامه یې خپروی‌چه‌دغه
منظومه دده شهرت ډېر زیاتوی
همدغه کال دی چه دوک دی‌له‌ټولو
القابو او عنعناوینو څخه معزو لوی
اودی دو یمار دتیا تر دمد یریت
وظیفه په غاړه اخلی او په د ی
ترځ کښې دمځکی پیژندنی اوبوټو
پیژندنی په مطالعاتو هم ځا ن
بوختوی او په‌دی‌باره کښې څور
رسالې لیکې .

په‌۱۸۰۵ کال کښې دشیلر مرګ
او دده مهلکې ناروغی چه نژدی
یې دی هم وژلی ؤ ګویته یو ه
سخته صدمه وه . په ۱۸۰۸ کال
کښې دفاوست لو مړ نی بر خه
خپره یږی او په همغه کال کښې
دناپلیون بناپارت په و یاړ پـه
ار فو ست کښې جشن جو ړ یږی
چه ګویته هم ګډون پکښې کوی
له ناپلیون سره دده خبر ې‌اترې
په هغه ښار کښې مشهو رې‌دی.
ګویته دناپلیون له خوا دعقا ب
لمژیون دو نورد نشان په اخستلو
ویاړل کیږی .

دګویته دعمر وروستنی کلو نه
دده دشاهکار فاوست په بشپړ
کولو کښې تیریږی یعنی په‌۱۸۳۳
کال کښې دغه‌کتاب دده د مر ګ
نه څو ور ځې د مخه پـا ی تـه
رسیږی .

ګویته یو ستر جهانی متفـکر
شخص دی سر بیره پر د ی چـه
عمیق شاعر ؤ حساس‌سیاستمدار
او تجربه‌کار سړی هم او لو ی
عالم ګڼل کیده . دنبو غ قوه په
پوره تعادل سره پـه ده کښـی
موجود ه‌وه دهنر او فکر له‌ټو لو
اشکالو سره یی آشنایی لر له .
سر ه‌ددی چه خاص مکتب نه لری
خودداسی شا هکار خاو ند د ی
**چه پواز ی المانی ادبیات ترخپلې**
**شـعا ع لا نـدی ر ا و لـی**
بلکه دتاج په خیردټولې‌ارو پـا
دادبیاتو په سر ځلیږی.

**فاو ست .**

فاوست یو الهام بښوو نـکی
ډراماتیک شا هکار دی. ددغه‌کتاب
ځو صحنی د۱۷۷۳ او ۱۷۷٤ کالو
په منځ کښې لیکلی شوی دی او د
**(اصلی فا وست )په نامه مشهور**
شوی دی چه هغه تقریبا دکتاب
نیما یی برخه ګڼله کیږی . په دغه
برخه کښې چه په ساده اوروا نه
توګه لیکله شوی ده ګویته خپلی
ځینی خاطری له افسانی سره‌یو

ځای کړی‌دی .
فاوست په دغه برخه کښی چه دعلم له‌زده کړی او دنعمتو نو له التذاذ سره کومه عـلا قه اوشوق لری ځان شیطان ته سپاری .نـو ځکه یوه معصو مه نجلی‌مارگریت غو لوی او په بده لاری یی‌رهی اوبیایی خوشی کوی . بی‌و ز له نجلی چه دفاوست له دغی بی وفایی ځخه ماییوسه کیږی خپـل کوچنی ماشوم چه له هغه سر ه ددی دنامشرو ع عشق محصو ل دی وژنی . بیا مار گریت‌دفاوست په قوی غیبږ کښی مړه کیږی خو دنزعی په وخت په غیبی آوازکښی بشارت ورکول کیږی چه دهغی پښیمانی له کبله چه ور ته پیدا شوی دابښل کیږی .

تردغه ځایه دادعشق او هو س درامه چه‌په مارگریت ترا ژید ی مشهوره ده دیو عشق‌داستا ن نه پرته بل څه نه‌لری .

هغه په زړ ه پور ی شرطونه‌چه دمفیستو فلس (شیطانی قوی )او رحمانی قوی ترمنځ ایښودل‌کیږی دداستان اصلی مو ضو ع د ه. مفیستو فلس په دی هڅه کښی‌دی چه فاوست دو حشت او بر بریت تر سر حد ه پوری وارسوی خو رحمانی طاقت نه‌غواړی چه داسی وشی اووایی چه فاوست کو لا ی شی په خپل طاقت په ټبو لـو وسوسو غلبه ومومی. له‌همد غه ځایه له فاوست څخه دکا مـل بشریت مظهر جو ړیږی یعنـی داسی انسان ور څخه جوړ یږ ی چه تـل په هڅه او یو ن کښی سر گردانه وی او انسان با یـد همدغسی په‌یون او حر کت کښی وی ترڅو چه خپل هد ف او هغه آید ه‌آل ته‌چه په خپل دراکه‌قو ت او دوجدان یی درك کړئ دی دعمل جامه ور واغوند ی .همدغه‌فکردی چه‌په دوهمه بر خه کښی دډرام محور گرځی .

گویته له همد غی دوهمی بر خی څخه له ۱۸۱۶ کال څخه وروسته په خپله منظومـه (شعراوحقیقت کښی څو نمونی ورکړی د ی . لیکن دایو حقیقت دی چه دفاوست دډرامی دو همه برخه په ۱۸۲۶ کال کښی شرو ع شوی وه ا و داهغه وخت دی چه ده‌پکښی‌دهلن په‌نامه یوه مجموعه خپره کړ ی‌ده. په ۱ ۸ ۲ ۸ کـال کښی یـی د لو مړ ی پـر د ی لو مړ ی برخه اودکلو نو هغه مجمو عه چه دامپراتو ر په دربار کښی‌تیریږ ی پای ته رسوی ده خو چه په‌حقیقت کښی دفاوست دډرامی دو همه برخه پای ته‌نه ده رسولی‌ځکه‌کوم متن چه‌په ۱۸۳۲ کـا ل کښـی دفاوست دو همی بر خې په نو م خپور شو هغه متن دی چه گویته وربانډی دفاوست دتراژ یډ ی‌نوم ایښی دی او حتی له مر گ‌نه څو ور ځی دهغه په لیکلو بو خت وُ. له دغو حقایقو څخه څرگندیږی چـه پنبا یی مو ضو ع ا د ا مـه لر لای.

دفاوست ډرامې په دو همه برخه دمنظومې لحن بیخي نوی د ی کومې مسالې چه په دغه برخه کښې را غلې‌هغه دلومړی برخې‌له‌مسالو سره مشتر که وجه نه لري ځکه په او له برخه کښې دژو ند ځیره عشق او هوس دی او په دو همه برخه کښې دژوندا نه‌تقریبا تو لی تجربې دی ځکه په کوم و خت کښې چه گرټېه دو همه بر خه لیکلې ده دی معمار وزیر گیا ه پیژندونکی او دنیا تر مدیرد ی‌او داهغه وخت دی چه دی په‌خپل‌نفس او اراده حکومت کو لای شي اوپه پوره‌صفایي اوآرامي‌دخپل‌داستان قهرمان له شیطان سره په مبار زه کښې دخار کوی . او هلن‌دده‌بندځه کوی تر څو چه دی په دغه خطر ناکه لار کښې چه شیطان و رته په کښې ناست دی یواز ی نه و ی بیاده ته له کفر او ملعنت خخه‌نجات و زکوی ځکه چه فاوست هیڅکله له خپل هدف او ایدیال څخه‌نه‌دی گر ځیدلی‌او دا ایدیال لکه چه و مووبل بل څه نه بلکه‌بشری‌ارمان دی.

که‌څه هم گویته نه دی کامیا ب شوی چه دفاوست له پاره‌دانسان په ژوند پوری مر بوطه ټو ل مسایل‌حل کړی خو کوښښ یې کړی دی چه دغه مسایل لکه په طبیعت کښې یې مقام او مو قعیت له خدای او همنو عا نو سر ه‌یې روابط . دده . دقوا ووحد ودتجزیه او تحلیل کړی . له هلن‌سره د فاوست دو صلت په باره کښې باید وویل شي چه دغه و صلت دگویته له نظره د پخوا و ختو د بشر دروح او فکر له تعادل‌سره دانسان دنوی روح دالهها ماتو دهم آهنگی مظهر دی .

دفاوست لومړی بر خه په ۱۸۲۸ کال کښې دژر ارد و نروال له‌خوا په فرانسوی ژبه ترجمه شو له په دغه تر جمه په خپله گو یټه ډیره خوبنه کړه او په ټو لو ادبی‌ټولنو کښې یی وستایله دوهمه برخه‌یی دالکسا ندر آرنو له خوا تر جمه شوه (۱۹۴۷).

دگویته نه پخوا یوانگلیسی لیکوال مار لووپه ۱۵۸۸کا ل د فا وست په نامه یو ډیر چا لپ ډرام و لیکه چه‌په هغې تراژ یډ ی کښې دفاوست شخصیت دگو یته دفاوست‌څخه ډیرتوپیردرلود. دمارلوو په درامه کښې فا و ست د گویته دشا هکار په خلاف بوډا سړی نه دی بلکه یوهوښیا ر زلمی دی چه ددنیا دټو لو لذتونو څخه برخه لري . دما رلـوو پـه تراژیډی کښې دفاو ست مر گ ددغه درام له ډیرو ښکلو صحنو څخه دی .

## فدر دژان راسین‌اثر

فدر دفرانسوی کلاسیک او ډرا ماتیک لیکوال ژان ر ا سین لیکنه ده .

ژان راسین په ۱۶۳۹کال کښې دفرته میلن په ښار کښې زیږیدلی دی دمتو سطی سرمایه داری کورنی

یو غړی دی چه دتارك دنیا بنځو او یا رو اپالانوسره یې نژدې ارتباط درلود . په ماشوم تو ب کښې یتیم شو او دخپل ژوندا نه لومړنی کلو نه یې له خپلې اناسره تیر کړل آخر دا هم مختلفه شوه اوراسین یې د ر رو اپالا نو داره کوونکو نه چه پاچاددوی ښوونځی ته اجازه ورکړې وه وسپاره له دې کبله چه روزنکو له راسین څخه پر ته بل شاگرد نه درلود او له بلې خوا یې په ده کښې زښته زیات استعداد او ذوق ولید نو خو مره یې چه وسه کید له دده په روزنه کښې یې کوښښ وکړ . مربیانو راسین ته دیخوانی یونان دتاریخ او ادبیاتو په باره کښې هم وسیع معلومات ور کړل . راسین ددیو تالو په دغه موده کښې چه دیوې ښکلې تنگې درې په یوه معبد کښې یې دانزوا او یوازی توب ژوند تاوه دخپلو همځو لو له معاشرت څخه محروم و او په زړه کښې یې له ادبیا تو سره پټه مینه لر له. دی نونس کلن و چه په فلسفه کښې دتحصیل له پاره پاریس ته لاړ او هلته له هنر مندانو اوشاعرانو په تیره مشهور قصه لیکو نکی ژان دولافونتن سره آشنا شو. دی په دغه وخت کښې یوه درامه لیکی چه له پاچاڅخه وربانډی سل اشرفي او(۶۰۰) لیر ونو نور انعامونه اخلی . په دې وخت کښې دی دتیاترله لو بغاړو سره روابط پیداکوی او خپل بخت یې دتراژیدی درامو په لیکلو کښې ازمویلی . پر روایان چه دخپل شاگرد په طبع کښې دا تحول ومنی سخت له وحشت سره مخامخ کیږی اودی ژر راغوا ړی لانگدوك ته چه تر ه یې پکښې دلوی کشیش پحیث ژوند کوی استوی اوتره ته یې دتراژیدی درامو په لیکلو کښې دی دکشیش دایو او دوه ی ورکولو منصب ورکړی .

راسین په بی میلی سره لانگوك ته ځی په همد غه وخت کښې چه تره یې ورته دکشیش دمنصبو نو یوه تشه چوکی لټوی دی خپلو پاریسی دوستانو ته عاشقانه او دوستانه لیکو نه استوی .

بالاخرة څرنگه چه زاړه کشیش دخپل ور اره له پاره مناسب کار پیدا نشو کړی راسین بیر ته پاریس ته ځی خو په دې وخت کښې له نورو وختونو زیات شاعر شوی دی تر ه یې څوموده وروسته مړشو او پرته له یوی زړی انا څخه چه پر روایان کښې معتکفه ده څوك ورته پاتې نشول . راسین یو ځل لافونتن پیداکوی اوله بوالو او مو لیر ستر و شاعرانو او ادبیاتو سره آشنایي پیدا کوی . دی بالاخره څو مهم آثار وړاندی کوی چه دا آثا ر

یی دده له پاره متعصبین ا و
جسا سدا نړپیدا کو ی هغه وخت
چه راسین دشهرت نوړ حد ته
ورسیږ ۳۷ کلن ؤ نا ځایه دده
دافکار و په چریان کښی تغییر
راغی دنګار خانی نه یی دخانقا
خواته مخه وکړه اوس دی دتیاتر
سره خپل روابط قطع کوی او له
ځان نه مقدس پلار جوړوی اوله داسي
ښځی سره ازدوا ج کوی چه حتی
دخپل میړه ډرامی یی هم نه لوستی
او نه لیدلی دی .

دی په ۱۶۹۹ کال کښی په روایان
کښی مړشو او هملته ښخ شو.
اندر وماك در ینانیکو س .شاکیان
بره نیسی . بایزید . مهرداد .
ریفی ژنی او فدرو ده شا هکا ر
ونه دی .

فدر :دغه درامه چه په ۱۶۷۷ کال
کښی لیکلی شوی دی دپخوا نی
یونان د ډرا مه لیکو نو ایپوا ر
اوری پیدا او هیپو لیند سنـك
له ډرامو څـخه نه اقتباس شو ی
دی .

شپږ میاشتی کیږی چه دآتـن
حکمران تر ه و ر ك شو ی او
د ده ښځه فـدر له سختـو او
اسرار آمیز ودرد ونو څـه پـه
تکلیف ده اومرګ ته نژدی شوی
ده خو بیا هم کلـه چـه د دی
دا یه ډیـری زاری او اصـرا ر
ورته کوی خپل را ز هغی تـه
ښکـاره کوی . دارنځ دعشق لـه
درد نه پر ته بل څه شی نه دی.
فدر دخپل میړه په زوی چه یو
ښکلی زلمی دی او هـیپو لیـت

نو میږی مینه شوی ده. فدروایی
کله چه ددی میړه په آتن کښی ؤ
نو هغه وخت هم ددغی مینی ا ور
ددی په زړه کښی په لمبو راغلی
ؤ. نو تل به یی کو ښښ کاو ه
چه دمیړه په مخ کښي دده دزوی
په باب بدې خـبری وکـړی او
داسی کار وکړی چه دزوی او
پـلار تر منځ یی بیلتون را شی
اوپه دغه تر تیب سر ه هیپولیت
له کوره وشړی او دفدر مینه رسوا
نشی. دایه (اونون) فدر نو ره
هم په دغه عشـق کښی تشویقوی
اوهغی ته وایی چه میړه دی مړ
شوی دی او انتظار دی ګټه نه
لری ستا دمیړه شعله یوه عادی
شعله ده یعنی دخدایی مقام ا و
منزلت نه لری چه دهغه درو ح
نه ویره او تشویش ولری . فدر
داو نون دتشو یق په اثرخپل تود
عشق زلمی ته ښکاره کو ی خو
هیپولیت فدر ته دحقارت او بی
اعتنا یی په ستر ګه ګو ر ی ځکه

چه دی په خپله په یوه ښکـلی
نجلی (آریسی) باندی مین دی .
نا ځایی دآتن حاکم تزه ژوند ی
راځی . فدر چه ډیره خجا لت
کیږی له میړه سره دخو خبر و
کو لو نه وروسته ځان پټو ی
او هیپو لیت اجازه غواړی چه
دخپل پلار له کور نه لاړشی. تزه
چه له دغو پیښو نه شکمن او
حیرا نیږی دنیایی په نظر تو ره
تیاره ورځی او نه پو هیږی چه
حقیقت له چا څخه و پوښتی .

دلته او نور دفدر په طر قدا ری هیپو لیت بد بخت تومتې کو ی اووایی چه ده له ډیرو کالو راهیسې دآتن دحاکم له ښځې سره معاشقه کول غوښتل .

تزه چه دډیر قهرنه په هیڅ نه پوهیږی خپل زوی بې له حقې خفه چه له ځان خفه ددفاع خو کلمې له خو لې وباسې له کور خفه شړی اودنپتو ن قهر ورته راکوزوی .

فدر غواړی چه خو له پرانیږی او له خپل ګران معشوق څخه دفاع وکړی خو ګله چه ور په زړه کیږی چه هیپو لیت دآرسیې عا شق دی او یوه ډیره ښکلې نجلۍ له ده سره په عشق کښې رقیبه شوی ده ددفاع له پار ه خوله نه خو ځوی او له خپل تصمیم څخه منصر فه کیږی .

نپتون د آسمانو خدا ی (البته داساطیر ی عقاید و له مخې) د تزه دعا قبلوی اود سیند یو حیوان ده ته ور دخارو ی . دهیپو لیت آسان تر هیرو ی او دی په مخکه وهی‌ا و په دا ی ترتیب هیپو لیت مړ کیږی . په دی وخت کښې فدر په‌خپل‌جنایت اعتراف کوی او دخپلې ګناه‌دتلافی کولوله پاره زهر خوری او ځا ن وژنی او تزه دخپل بې ګنا ه زوی‌دروح ښاد ولو له پاره آرسیبې دخپلې لو ر پحیث منی .

په دی داستان کښې دتوجه وړنکې دادی .فدر په‌حقیقت کښې دهیپولیت به صفایی او پا کی مینه ده . صفایی او پا کی دهغه موجود رازدی چه هیچاته اړتیا نلری یعنی مستقل اوقایم بالذات دی او فدر هغه شی غوښتو ی‌چه دایی نه‌لری اوزړه ئې غواړی چه همغه ولری.قدردی خبری ته دومره اړه نه‌ده چه‌هغه وربانسی ګران وی بلکه داغواړی چه هیپولیت وربانندی نظر ولری او دی ته متوجه وی چه‌فدر هم په دنیا کښې شته .کوم شی چه فدر مسحوره کړی ده یوه بله هستی ده چه‌ددی دوجود اوهستئی نه تفاوت لری او راسین ددغه سحر او جذبی هوس او عشق دتشریح کولوپه لار کښې کولت اوژان‌کوکتور وو نورو فرانسوی معاصرو لیکوالو ته نژدی شوی دی. آیاهغه څه چه فدر ئې په ځان کښې احساسوی عشق دی اوکه هوس ؟

داخبره نه‌ده معلومه .اودا په خپله دفدرپه نظرکښې هم‌عجیب شی ښکاری اوداداسې مسحوره او مجذوبه شوی‌ده چه حتی په خپله عشق هم‌ددی په نظرکښې عجیب شی ښکاری .

## اجتماعی تړون

### دژان‌ژاك روسوائر

اجتماعی تړون‌دفرانسوی لیکوال او فیلسوف ژان ژاك روسو شاهکار دی .

ژان‌ژاك روسو په ۱۷۱۲ کال کښې دژنیو په‌ښارکښې چه‌هغه

